د جهاد په دی اوږده مرحله کی چی مهاجرین ئی څلور مليونو ته، شهيدان ئی یو مليون تـه او د هیـواد ورانی دوه برخی تـه ورسیده قضیـی د سیاسی بعد پـه هماغه خپل ځای ولاړ دی. باید په دی ټوله خونړی مرحله کی د روسانو پرضد سوله دوستی نړی پـه تیره اسلامی نړی جدی مواقف نیولی وای خاصتاً د کابل سره د سفارتونو او تجارت په سطحه ولی دی سیاسی رخی او جمـود زمونږ قضیـــه ځای په ځای زبشلی ده هغه هم پـه دی خاطر چی زمونږ ګاوندی دوست ورونه د دی کار ابتکار په غاړه نه اخلی فکر کوی چی روسان په غوصه کیږی او خبرو تـه ~~حـلـه~~ رسوی خو دا کار زمونږ د قضیی په ګټه نه وه زکه د هغه په لړکی روسانو او کابل رژیم خپل د مه نیولی او داسی ده چی د قضیـی نظامی او اقتصادی خواوی سختی حساسی مرحلی ته رسیدلی دی ، ولی دا د دی معنا نــه ورکوی چی د قضیی د سیاسی خوا په هکله روسان بی تفاوتـه دی بلکی ډیر کرتـه امکان لری چی د همـدی سیاسی بعد تأثیر او اغیـزه نسبت نورو ابعادو ته زیاتـــه وی زکه د افغانستان د قضیـی پـه رابطه د مسکو مناسبات ان د کمونستی احزابو سره هم دګډوډی مرحلی ته

رسیدلی او داسی ښکاری چی د ملل متحد او ناپیلو هیوادو دکتلی وروسته دکمونستو احزابو کتله دریم مهم بین‌المللی مرجع ده چی روسانو پکی خپل رول د لاسه ورکړیدی یائی سخته صدمه لیدلی ده د همدی ځایه د قضیی په سیاسی بعد کی موجوده کرختیا او توقف چی د سیاسی حل د جریان د سلامتی په خاطر ادامه لری ډیره مناسبه ګڼه ده چی روسان ئی د روانو خبرو په ارتباط پورته کوی .

## د محتوی له مخی

مهاجم قدرتونه طبیعة غواړی ځان د خطرو مجسمه وښيء زکه هغوی سره همدا تصور دی چی څنګه کولای شی کمزوری هیوادونه د مطیع غلام په حیث استعمار کړی په دی ډول کله چی هغوی د زور د لاری کوم هدف نشی ترلاسه کولای نو د تزویر لار نیسی او کله چی د جنګ د لاری د ناکامی سره مخامخ شی نو بیا د سولی او خبرو مورچل نیسيء دا چی خبری به په مختلفو اړخو کی د مقاومت د ختمولو په جهت کی رهبری کیږی څه ناڅه خرګندنه شوه خو هغه خطر چی د دی خبرو د محتوی په غرضی او مریضو فقرو کی نغښتی دی هغه د مقاومت او

د ملت د مستقبل په هکله لا خطرناک دی . د پاکستان له خوا طرحه شوی څلوراصله د زینودپاره تریوه حده‌قانع کوونکی وه خو اوس د هغو اصلونو په تعبیر او افاده کی نه یوازی تفاوت بلکه پوره بدلون راغلی. د خبرو هغه محوری فقره چی په افغانستان کی د خلکو په خوښه د یو حکومت جوړول وه هغه اوس یا د بحث نه لویدلی ده یائی د بحث په نحوه کی بنیادی بدلون راغلی دی . څو جانبی فقری د روسانو له خوا البته په پلانیزه شوی توګه ورزیاتی شوی چی هغه د افغانستان د قضیی په باب بین المللی ضمانتونه او د بهرنیو مداخلو بندول دی . همداسی د روسی د فوځونو د وتلو فقره اوس د زمانی جدول «تقسیم اوقات» په پلمه داسی عنوان شوی چی د روسی فوځ د وتلو د تعهد په ځای هغه د افغانستان په خاوره کی د روسی فوځ د اوږدی دوری د قانونی موجودیت اعتراف ته ورته ده چی ښائی پاکستان د هغه ابتکار په غاړه ولری ځکه خو غواړو د خبرو په دی فقرو باندی یو لنډ نظر واچوو او وګورو چی د خبرو دغه محتوی او په هغه باندی موافقه قضیه د چا په ګټه را څرخوی ؟

## بهرنی مداخلې

په خبرو کې د بهرنیو مداخلو په عنوان د فقرې داخلول او بیا د هغې په ارتباط د یو قرارداد پاسول اصلاً د روسانو د څخیدلی مغ د پاره ترټولو مناسبه پوزه ده چې د خبرو مقابل لورې ئې د جوړولو په کم او کیف کې خپل سیاسي هنرښکاره کړ .

د مقاومت د پیل نه تراوسه پورې روسانو همدا یو دروغ تکرارول چې هغوی د افغانستان په داخلي امورو کې د امریکا ، چین ، مصر ... د مداخلو د مخنوی په خاطر خپل فوځ افغانستان ته لیږلی او هغه چې د مقاومت او انقلاب په نامه یادیږي د روسانو له نظره هغه په پاکستان کې د امریکائي متخصیصینو په لاس د تربیه شویو اشرارو مجرمانه عملیات دي ...!

سره د دې چې د روسانو دغه درواغ تردې حده رسوا ارشرمیدلې دي چې نه په ملت کې او نه د افغانستان نه بهرڅوک د هغوی دې د رواغو ته غوږ ږدي ولې کله چې هغوی د بهرنیو مداخلو په نامه د بحث وړ فقره د خبرو په اجنداکې شامله کړه نه دا چې دې سرو درواغو ته ئې ژوندی

شیره ورو بښله بلکې د پاکستان ښځه ئې د افغانستان په خونړي جرم کې د شراکت اعتراف هم واخست او دا یوه نه جبیره کیدونکې اشتباه ده ځکه په افغانستان کې جنگ د روسي فوځ او افغان مسلمان ملت ترمنځ روان دی چې په دې صورت کې د روس له خوا د بهرنی مداخلې تشویش او دعوا د خندا وړده ځکه چې که په افغانستان کې که بهرنی مداخله «ښه نظامی او ښـه سیاسی» موجوده ده هغه ټولې دنیا ته معلومه ده چې د روسي له خوا ده. که څوک د دې مداخلې په ارتباط تشویش یا دعوا هم لري هغه باید د پاکستان او افغانستان ګاونـدی هیوادونه وی ځکه چې د افغانستان پسی جوخت د هغوی واردی ولې دا چې بهرنی مداخلې روس عنوانـوی او هغه د دې تشویش او دعوا کوی حقیقة چې دا کار د افغانستان د عادلانه قضیې د اصلی هویت او ماهیت د تغیر په برخه کې یوه کامیابه توطئه ده اوبس .

داسې ده چې زموږ د قضیې په رابطه بـه سادات «چې یووخت د مسکو ګوډاګی وه او د منځنی ختیځ پـه رابطه د مسکو خائنانـه موقف هغه د امریکا لمن کې وغورځوه » ښـه داسې خبرې کړې وې چې هغه د روس

پرضـد خپله عقده سره کړی کیدای د دنیا نورو ملکونو لکه امریکا هم کله داسی څه اظهارات کړی وی چی ګوا کی هغوی د افغانستان د قضیی جدی ملاتړ دی ولی دا یو هم د دی معنانه ورکوی چی دا قضیه د هغوی په لاس جوړه ده او یا د دغو هیوادو مداخلو را منځته کړیده ځکه چی د افغانستان مجاهدینو په وار وار دا خبره ردکړی او دغسی اظهارات ئی د خپل هیواد په رابطه دښمنانه ګڼلی او هغوی بل هر بهرنی جهت تـه د دی داډ ورکړی چـی د هغوی د شوم غرض انجام بـه په افغانستان کی عیناً د روسانو انجام وی. دا بیله خبره ده چی د روس نور دښمنان بـه د افغانستان د حالاتو په رابطه داسی څـه وائی چی خپـل روسی رقیبان وځوروی ولی واقعیت پوره ښکاره دی چی نن افغان ملت پخپله خاوره کی د روسی د فوځ سره جګړه کوی .

په همـدی اساس د بهرنی مداخلی عنوان شوی فقره او د هغی پـه اساس طرحـه شوی موافقه ډیر خطرناک ابعاد لری ځکه د دغسی قرارداد او موافقی وروسته پاکستان په طبیعی ډول د دی جریمی او کشمکش یو طـرف حسابیږی او د موافقی د تفصیلاتو یا د هغه د مراحلو په لړکی روسانوته

د دی پلمه په لاس ورکوی چی د موافقی وروسته د مقاومت ادامه د پاکستان د مداخلی په عنوان د روسی فوځ د قانونی بقاء او اقـدام دلیـل وګنی او پـه هغه صورت کی بـه بیا پاکستان د دی نه عاجز وی چی د مداخلی د تور نه ځان بریء وښی ، دا خو پـه ځـای پرېږده چی پـه کابل کی بـه د پاکستان د مداخلی په عنوان د یوقانونی نظام دعوا روسانو تـه د خپـل فوځ او فوځی عملیاتو د ادامی سند پـه لاس ورکوی ، ځکه چی د کابل او مسکو بی ماهیته کمونستان همدا د ملت برحقی مبارزی او جهاد ته بهرنی مداخله وائی ترڅو مقاومت پای ته نه وی رسیدلی هغوی په طبیعی لحاظ د همدی فقری په اساس د دی حق ځانته ورکوی چی ووائی بهرنی مداخلی ختمی نه دی لکه څنګه چی په همدی اساس هغـوی غواړی د روسی فوځ بقـاء او ادامی تـه یو قانـونی حالت ورکړی .

ښائی د بهرنی مداخلی په رابطه د خبرو دواړه جهتونه په مشخصو ټکو او حالاتو موافقه کړی وی ولی زه باور لرم چی د مقاومت ادامه او توقف یو هم د دغو ټکو او حالاتو پوری مربوط نـه دی او په دی صورت کی ده چی د مسکو

واکمن حاکمان د مقاومت د خپلو او مخنوی په خاطر خپل فوځي موجودیت ته قانونی رنګ ورکوی زکه محوری مشکل خو همدغه مقاومت او جهاد دی .

دلته دا سوال مطرح کیږی چی د سیاسی حل وروسته د مقاومت ضرورت څه دی ؟ طبیعی ده چی د دی سوال ځواب په یو بل سوال کی نغښتی وی هغه دادی چی د سیاسی حل د موافقی وروسته د روسانو د وتلو د پاره د تقسیم اوقات ضرورت څه دی ؟ هغه څه چی د موافقی وروسته د روسی فوځ د بقاء ایجاب کوی همغه ته ورته دلائل هم د موافقی وروسته دمقاومت د ادامی ایجاب کوی زکه چی روسی فوځ دتصمیم اوقات په عنوان په دی خاطر قانونی مرحله غواړی چی د رژیم نه دفاع وکړی، اومخالفین وټکوی، له منځه ئی ویسی او د روسی فوځ دغه ماموریت بخپله د مقاومت دویم نوم دی خو هلته به بیا روسی فوځ د خپلی بقاء د پاره د همدی موافقی سند په لاس کی ولری، هغه هم په داسی حال کی چی د هغوی مخالفین بنائی د همدی بهرنی مداخلی د بندیز په عنوان په پاکستان کی د پنا اخستلو حق هم د لاسه ورکړی .

دا د یوی خوا : بلی خوا د مسکو استعمارچیان

پوهیږی چی د بهرنی مداخلی د بحث او موافقه په لړکی همغه مسلمان مخالفین پـه روحی او عملی لحاظ غواړی وځوروی او د هغـوی پرضد پـه دی ناکام روانی جنګ کی د سیمی او منطقی کمونستان، روسانو ته خوشبین وګرځی هم شریک کړی او دغسی طرحی سره موافقه څخپله دا ثابتوی چی روسان د همدی بهرنی مداخلی د عام اصل په چوکات کی دغه روانی جنګ ته څومره وسیع محاذ پرانیزی. زکه چی هغوی د همدی اصل په استناد د امیر امان الله خان سره د ۱۹۲۶ کال د موافقی له مخی د بخاری پر مسلمانانو باندی د افغانستان د خلکو د خوا خوږی دروازی وتړلی او د نادر خان سرهٔ ی د ۱۹۳۱ کال موافقی‌له مخی د کابل‌نوکر رژیم په بشپړه توګه د یوی روسی بی رحمه فرقی پـه حیث د مبارزینو په تکولـو مامور او خپـل مخالفین ئی د همدی خائنانه موافقو پـه لړکی تارو مار کړل .

## د روسی فوځ د وتلو د پاره د تقسیم اوقات ضرورت

نن د روسی فوځ د وتلو خبره د یو بی وسه هیـواد بانـدی د هجوم نـه هم شرمونکی خـبره ګرځیدلی سری تـه هغه پښتو متل را پـه یادوی چی «دلولی راتلل یوشـرم او

وتلئی بل شرم» ولی اوس اوس دی فوځ د کریملین د اقتدار-
چیانو د سوکاوی څخه اراده سرته ورسوله او د خپل ناکام
موجودیت له مخی ئی د کریملین واکمنان دی ته اړویستل
چی د هغوی د وتلو د پاره مناسبه لار ولټوی. ښائی روسانو
ته ډیر آسان کار هم د دی موافقو په لړکی همدا د روسی
فوځ د وتلو مناسبه طرحه پیدا کول او عملی کول وی، ځکه
چی هغوی د خپل فوځ ستړیا او بیرته وطن ته د هغوی
د سالمو ستنیدوتنکی هوسونه ښه درک کړی لکه څنګه چی
دا مساله خپلوکورنیو ته د روسی فوځیان لیکونو نه واضح
هم ده ولی دلته د روسی فوځ د وتلو وروسته د کابل د رژیم
د بقاء او استحکام تشویش دی چی دا مسأله زندهوی او هغه
ئی په یوه سیاسی معما بدله کړی ده ، ځکه چی هغوی باور
لری د روسی فوځ په وتلو د مسکو له خوا تپل شوی رژیم
د مقاومت د خړ سیلاب څخه نشی نیولی دا خبره د کریملین
واکمنانو تــه د روسی مشاورینو د مسلسلو را پوروننه ښه
څرګنده شوی ده د همدی ځایه ده چی د روسی فوځ د آسانه
وتلوڅخه خپله درژیم کاواکی نیولی‌ده. روسان‌غواړی دروسی‌فوځ
د قطعی وتلونه مخکی باید په لمړی درجه یو مستحکم

کلو بی تجربی حرکت د دی ورپوه چی د داؤد خان غوندی مغرور امیر سره دی پنجه ورکړی ولی دا د خدای اراده وه چی د هغه وخت مسلمانان ئی د ارقامو او تدبر پرځای د توکل او همت څپی ته وسپارل او په معاصر تاریخ کی ئی د لمړی ځل د پاره اول د هجرت او بیا بخپله د داؤد رژیم پرضد د جهاد اساس کښېوده هاته چی په ۱۳۵٤ کال کی د داؤد خان د رژیم د لسونه زیاتی اداری کسړی سره وشړ - قیدی او د داؤد خان امیرانه غرور او لیونتوب ئی هم وجړقوه ان تردی چی د ۱۳۵٤ کال د مقاومت تکان د کمونستانو او داؤد خان اعتماد ختم اوهغوی ئی د اوه پنځوسم کال په اوږدو کی یو د بل په لمنځه وړلو کی مصروف کړل .

خو کله چی د مسلمانانو د مقاومت پروګرام د خپل څوښیدو مرحله تیره وله د داؤد خان او کمونستانو خپل منځی سؤتفاهم او زړه بداوی وخت او حالات د داؤد خان او د هغه د رژیم د سقوط سرته ودرول او په دی ډول د مقاومت دویمه مرحله کی د خلق ګوند په راتګ مسلمانان د یو تاریخی مرګ اوژوندی امتحان په وړاندی ودریدل .

د خلق ګوند سره نظام ، فوځ او د حالاتونه ناخبر ،

نظام جوړ کړي چې داګرانه خبره هم ده او په دويمه درجه کې د نظام پرضد روان مقاومت پای ته ورسوي چې دا د لمړي هدف نه هم ډيرګران او زمونږ په عقيده يو ناممکن کار هم ښکاري. دلته ده چې د روسي فوځ د وتلو په فقره کې د تقسيم اوقات د ضرورت خبره مطرح ده چې هغه د يوی خوا زمونږ د ملت د پاره د منلو وړنه ده او د بلې خوا کيدای شي د افغانستان څخه د زره تورن روسي فوځ د پاره هم يوه مفاجاه وی ترڅو د همدی زمانی جدول «تقسيم اوقات» له مخی هغوی په افغانستان کې د خپل فوځ موجوديت قانوني او په دويمه درجه کې ئې د بهرنی د مداخلو په نامه د روسي فوځ دوامدار موجوديت ته قانوني بڼه ورکړي ترڅو د دی لاری په لمړی قدم کې د دنيا فام د روسي فوځ د اشغال نه يوازی په نامه بهرنيو مداخلو ته واړوی او په دويم قدم کې د همدی فرصت په لړکې مقاومت کمزوری او ټپل شوی رژيم ته قانونيت او قوت ورښي.

زما له نظره د بهرنيو مداخلو د عنوان شوی فقری ترڅنګ د روسي فوځ د وتلو په ارتباط د تقسيم اوقات طرحه او منل دی ته ورته دی چې څوک د مجاهدينو او

ملت لاس او پښې وتړي روسانو ته ئې تسليم کړي او بيا ووائي
چې نور نو بايد روسان له افغانستان څخه ووځي .

که چيرته د تپل شوی رژيم د قانونيت او بقا په تعهد مهاجرين او ملت د روسي فوځ د قانوني موجوديت په موافقه بيرته نظام ته سپاري نبه داده چې د موافقي پرته مهاجرين د کابل رژيم او روسانو ته وسپارل شي ځکه همدا کار پرته له کوم تعهد او موافقي د روسي فوځ د وتلو د پاره زمينه برابروی په دی صورت کی موافقه او خبری ټولی بې معنا دی ممکنه نه ده چې د مقاومت د تسلميدو په صورت کی روسي فوځ په کابل کی پاتی شي اصلا د هغه د پاتی کيدو ضرورت نه ليدل کيږي ځکه روسي فوځ به همدی خاطر راغلی چې د ملت د ارادی خلاف په هغه باندی کمونستی رژيم تحميل کړی که چې موافقه داسی وی چې کمونستی رژيم يا د روس له خوا پيشنهاد شوی بل رژيم بايد ومنل شي نو اصلا دغه موافقي ته هيڅ ضرورت نشته ځکه چې دغسی يو کار ټخپله روسان ديته اړ باسی چې افغانستان پريږدی، منتهی د موافقي په صورت کی به د روسانو سره د رژيم په تپلو او منلو کی بل لوری هم برخه اخستی

وی چی دا کار زمونږ د قضیې سره غبرګې خیانت دی .

پـه هغه صورت کې چی د روسی فوځ پـه مقابل کې پاکستانی، چینائی، مصری... فوځیان جنګیدل او په دی رابطه د روس یا کـوم بل بین المللی اداری سـره دلائل وه داسیء وه چی روس د خپلـو فوځونو د وتلو د پاره د زمانی جدول په لړکې اطمئنان غوښتنی وای ولی په هغه صورتکې چی یوازی مهاجم روسی فوځ د ملت سره جنګیږی د وقت مسأله اصلا مهمه نه ده او په هغه صورت کې چی د روسی فوځ د وتلو نه وروسته مقاومت او ګډوډی ادامه پیدا کړی چی زه فکر نکوم هلته به مسأله بخپله د افغانستان دُ خلکو داخلی مسأله وی او اصلا د روس پوری اړه ونلری .

زه باور لـرم چی پـه دی قرارداد کې چی ډیـر راته لیری او غیـر عملی هم ښکاری د وخت مسأله د مره مهمـه هم نـه ده لکه روسان چی ورته حسابونه کوی زکه روسان د اوو مسلسلو کلونو ترخه تجربه ښه لیدلی ده ولی دلته چی د وخت مسألی ته اهمیت ورکوی هغه د پاکستان یاهـری بین المللی اداری له خوا د هغه سره رسمی موافقه او د موافقی نور مهم بندونـه دی چی وخت د روسانو او کابل رژیم پـه

ګټه ګرځوی .

زمونږ له نظره که څه هم د دغه وخت زیاتوالی زیات خطرناک دی ولی حقیقت دادی چی لکه څومره چی خپله د وخت مسأله خطرناکه ده دمره ئی د زیاتوالی او کموالی خبره د اندیښنی ورنـه ده زکه چی د روسی فوځ د وتلو د پاره نیټه په افغانستان کی د هغه موجودیت قانونی ګرځوی چی روسانو تـه همـدا مهمه ده نـه د وخت زیاتـوالی او کموالی زکه چی د دغی موافقو له مخی نه هغوی نه افغانستان پریږدی او نـه پاکستان ، بلکی د همـدی موافقی په پلمه غواړی افغانستان کی دیره واچوی او پا کستان ته لار پیدا کړی زکه روسانو چی هر چیره نظامی مداخله کړی د همدی سیاسی قرارداد له مخی ئی لار لټولی ده او د هغوی تور تاریخ تولو ته څرګند دی . لنډه دا چی زمانی جدول باندی موافقه د یوی خوا د روسی فوځی د پاره په افغانستان کی د قانونی بقاء سند ور کول او د بلی خوا د روسی فوځ پـه حضور کی د کابل رژیم ته د مهاجرینو تسلیمول دی .

## بین المللی تضمینات

سیء دمچی دزور ورو خبره هم په زور ولاړه وی د یوی خوا داسی ښکار وی چی مهمه مسأله د روسی فوځ د وتلـو مسأله ده بیا ګوری چی د روسی فوځ د وتلو خبره د داسی رژیم سره کیږی چی نه ملت لری او نه فوځ زکه که فوځ ئی

درلودی روسی‌فوځ ته څه ضرورت وه ؟ ولی فوځ چی روسی دی او د کریملین سری خورو را لیږلی بایــد د هغه خبری د روسانو سره شوی وی د بلی خوا د روسی فـوځ ظالمانـه تجاوز ته د بهرنیو مداخلو په عنوانولو داسی رنګ ورکوی چی‌کوا کی هغه د نـورو د مداخلو پــه خاطـر راغلی چـی د همدی تصور پـه بنا روسانـ غواړی په دی موافقو کی د بین‌المللی تضمینـ خبره د روسی له خوا داسی طرحــه کوی چـی مقابل لوری ملامت وی بایـد د راتلونکی غلطی د مخنوی پــه خاطر تضمینات هــم د مهاجم فوځ قوماندانانو له ورکړی شی په دی معنا چی د موافقی وروسته‌که روسان په افغان ملت خپل ظلم ته ادامه ورکوی بهرنی نړی ان د انسانی همدردی پــه حدودو کی د هغه سـره د رابطی حق ونلري او نــه دی څوک دمره هم وائی چـی روسان ظالمان دی لکه چی زمونږ قضیه په همدې حدودو کی پالل کیږی .

کله چی د افغانستانـ د مظلوم ملت د قضیی د یو طرفه او ظالمانه خبرو په اجنـدا کی سری د روسانو له خوا د غوښتلـو شویو تضمیناتـو موضوع تــه‌کـوری وینی چـی د مهاجم فوځ را لیږونکی واکمنان څومره استعمارکرانه موقف

نیسی او مقابل لوری باندی څومره مړندی وهی ؟ دا چی
د دی فقری تفصیلات او احتمالات څومره زمونږ د عادلانه
قضیی انسانی هویت او ځیری ته بدلون ورکوی او
ترکومه حده زمونږ ملت د خپلی ارادی او پریکړی په
نسبت بیگانه ښکاروی هغه خو د راتلونکی وخت په
دیپلوماسی یکسونوکی تړلی خبره ده ولی هسی په اجمالی
توگه دغه فقره سړی ته د حقائقو سره د سرو بدتلتو
استعمارچیانو دښمنانه پروگرام ښه څرگند وی شی .

روسان غواړی د دی بند د موافقی له مخی زمونږ
د مظلوم ملت سره د دنیا د خلکو د ملاتړ ټولی احتمالی
لاری بندی کړی او د هغی په سیوری کی د افغانستان
د قضیی نه متاثر جهتونه د یوی خوا د مداخله کونکو جهتو
په حیث معرفی او د تضمین نه وروسته هغوی په غیر مستقیمه
توگه د قضیی او مقاومت په خفه کولو د ځان سره سهیم
کړی ترڅو د دغی عادلانه قضیی په خفه کولو دنیا او
دغو متاثرو جهتو ته وښی چی د بهرنی مداخلو په ختمیدو
افغانستان ته د کمونیزم د امن آمان شپه څومره نوری
قربانی غواړی .

دغه تضمین چی روسانئ غواړی عجیبه تضمین دی؟
د کابل رژیم ته د مهاجرینو د تسلیم نه نیولی ان د یوعادی مجاهد زخمی د پاللو، د شهید د ماشوم بچی د تربیی پوری ټولو ته شامل دی د قضیی په رابطه هر سیاسی او فرهنگی فعالیت د همدی مادی په بناء ممکن د ضمانت د روحی سره مخالف کار عنوان او روسانو ته د ابهانه په لاس ورکړی چی د خپل فوځ ادامه توجیه کړی .

که څه هم د افغانستان د خلکو اسلامی مقاومت ترډیره حده دغسی ضمانتونه په آسانی نشی کمزوری کولای او هغه د ملت او د هغه د عقیدی پوری تړلی خبره ده ولی بیا هم دغه ناروا ضمانتونه بنائی په سیمیئزه او بین‌المللی فضاء کی داسی بدلون راولی چی د یوی خوا زمونږ د درنی قضیی حیثیت خراب او د مجاهدینو د کورنیو د دمی ځای ورک او په دویمه درجه کی د روسانو د شرمیدلی او پڅی دپلوماسی د پاره د نوی تحرک زمینه برابره کری .

که څه هم کیدای شی زینو ته عاطفی مسأله وی خو مونږ باور لرو چی د افغانستان د مقاومت په رابطه زینی محدود تجار وکړی چی په دی قضیه باندی تجارت کوی

بنائی پـه دی تضمیناتو کی هغوی آرام ځای او پـه غنیمت راوړی هوسائی د لاسه ورکـړی یائی نوره هم غبرګنه کـړی ځوک پوهیږی چی همدا کار د مقاومت او جګړی په موجوده ستراتیژی کی د مجاهدینو په ګټه جدی بدلون راولی خو روسان کله د دغسی یوحالت درامنځته کیدواتکل کولای شی؟ هغوی د بین المللی تضمیناتو پهخائنانه فقری باندی دبحث او موافقه په لړکی غواړی دافغان ملت رابطه دنوری دنیاسره وشلوی او د همدی بنـد په بناء د سیمی او نړی رژیمونه د مقاومت په خفه کولـو د ځان ترخنګ ودروی چی دا کار ډیر مشکل او غـیر عملی هم دی ز که هرهغـه ضمانت چی هغـه د مقاومت په ختمولو کی رول ولوبوی هغه په طبیعی ډول د دیورند بلی غاړی د خیبر پوری ته د خطر د را لیږدولو ضمانت هم دی .

ـسی ، ده چی روسان د ضمانتونو په غوښتنه غواړی د افغانستان قضیی ته داسی رنګ ورکړی چی هغه د افغانستان په داخلی چارو کی د ګنو قدرتونو د مداخلی نه را پیدا شوی داسی نـه ده لکه نـړی چی ئی د روس او افغان ملت ترمنځ پواخ ودبګنی د همدی ځایه او په همدی ضمانتونو په

لرکی هڅه کوی چی د تضمین په عنوان خپله ملامتی او جرم پټ کړی .

## وطن ته د مهاجرینو ستنیدل

ښائی دا په معاصر تاریخ کی ترټولو لویـــه معجزه وی چی د اسلام په خاطر دی څلور ملیونه انسانان خپل کور او کلی پریږدی او پـه یوه ګاونـدی هیـوادکی د ژونـد سختو شرائطـو تـه اوږه ورکـړی ولی هغه څـه چـی د دی نـــه هم لوړ مقـام لری هغه د ګاونـدی مسلمان ورور هیـواد خلکو دغه بی غرضه پنا ورکـول او بیا په دی هیواد کی د څلورو ملیونو مهاجرینو د امن او آمان مسأله ده . باور لرم چی دا خلک بـه یوه ورځ خپلو ورانـو کلیو او کورونـو ته ستنیږی خو هغه ورځ ښائی زمونږ ملت د پاکستان د خاوری په پریښودو د دی ملت د احسان درونـد پیتی پـه سروطن تـه وکرځی او د دی مسلمان ملت د خوګلنی وروروَلی پاس بیا هم ادا کړی لکه پرون چـی د روسانو سره به جګړه کی د هغوی د خاوری او وطن نه هم دفاع کړی وه دا هم ښائی د تاریخ معجزه وی چی پاکستانی ورونه د خپلو افغانی مهاجرو ورونو پـه راتلونکی «مخه ښه» کی د داسی ملت د میلمستیا نه

خلاص شي چي د دې ميلمستيا پاس‌ئې پوره ماتلې دی .

د همدې مقدمې په رڼا کې ويلی شو چې د مهاجرينو مسأله د ټول هغه تکليف سره سره چي ورور هيواد پاکستان ته‌ئې ورانډې کړی د پاکستان د پاره دمره جدې او مهمه نه ده لکه د روسانو د پاره‌ئې چي جنجالونه راپخته کړی ځکه همدا څلور مليونه مهاجر د روسی فوځ پرضد د ملت د حساسيت د روسی‌نظام سره د ملت دنه رابطې او دکمونيزم سره زمونږ د کرکې هغه ژوندی شاهد دی چي د کريملين ملائی غوټه ورماته کړی او د همدی ځايه ښائې روسان په ډير استعماری هوس د مهاجرينو د ستنيدو د فقرې بحث اوتطبيق‌ته اميدوار وی ولی دا چي دا مهاجرين به پاکستان د همدی موافقی په حدودو کی وطن ته د تللو په برخه کی څنگه قانع او راضی کوی دا هغه مطلب دی چي افغانستان او پاکستان د خلکو راتلونکی مناسبات ئې د يو جدې سوال په ورانډې دروَلی دی؛ ځکه هرهغه رژيم چي د ملت اراده او د هغه ممثل يکی برخه ونلری او هغه د موافقی او قرارداد له مخی په هغوی وتپل شی د بيرته ستنيدو په صورت کی به د هغوی سره جهادی غرور او اسلامی عـزت ملگری نـه وی

ملت او د مسلمانانو سره فقط د داؤد خان پرضد د مقاومت نیمه ځوښیدلی تجربه وه .

دا مبالغه نه ده که ووایم چې د مقاومت د برې او پراختیا ترټولو لوی عامل همدا د داؤد خان د رژیم په دوران کې ویاړلی هجرت او بیا د نظام په پرضدئې پیل شوی مقاومت وه ځکه د ثور په بلاکې راګیر ملت یوازې د همدې مهاجرینو په لارکې د رڼا ځرک لیدده او د امید ځای ئې پس له خدایه همدا ځوکاله پخوا مهاجر شوی مسلمانان و .

خو په دویمه درجه کې ترټولو لوی عامل چې د رژیم پرضدئې مقاومت او جهاد ته قوت ښښلی او ملت ئې د مجاهدینو ترڅنګ درولی هغه د ملت سره د همدې کودتائی رژیم د مغرورو اقتدار چیانو سپکه معامله وه چې په مخکنی فصل کې مې د ارقامو په حساب وړاندې کړه .

د باور خبره نه ده هغه رژیم «چې د افغانستان په ډیرو لیریو غرنیو سیموکې هم خلکو د ویرې او وحشت څخه خو نه نشوه خلاصوله ټول خلک ئې په مارشونو او پروګرامونو کې برخه اخلې» د یوه کال په دوران کې داسې مرحلې ته ورسیږې چې د رژیم واکمنان دې پخپله هره بیانیه کې د ملت سره

لدی چی د هغوی ستنیدل به قضیه د روسی او مقابل لوری د فیصله شوی طرحی پـه پوله کی ودروی زکـه دا د ملت او راتلونکو شرائطو پوری مربوطه خبره ده که خـه هم لس زره بی وا که کمونستانو تـه د ۱۴ ملیـونی ملت یا دری ملیون مسلمانو مهاجرینو سپارل خپله راتلونکی اوضاع او د سیاسی حل راتلونکی پراو ښه څرګندوی .

د دری ملیونه مسلمانـو، بی وطنه مهاجرینو منل ډیـر لوی اخلاق ارزښت دی ولی د هغوی پـه باب د تصمیم او بیا وطن ته د هغوی د رخصتولو خبره هم ډیرلـوی تاریخی مسؤلیت دی چی نـه ښائی پدی رابطه د مهاجرینو د ژونـد د شرائطو د مجبوریتو نـو یا د روسانـو د غوښتنی پـه بناء طرحـــه او تصمیم ونیول شی بلکی بایـد د هغـوی د هجرت د پیام او ارمان په معیار د هغوی د ستنیدو خبـره مطرح وی . ډیر د نظره لویدلی ښکاری چی د مهاجرینو د ستنیدو فقره به د سیاسی خبرو اوکتنو په لړکی د پیـام او آرمان له مخی تر بحث لانـدی ونیول شی بلکی ډیـره ممکنـه ده هلته دا فقره د کابل رژیم د طرحی او پروګرام پـه اساس د بحث لانـدی نیول شوی وی ترڅـو هغـوی ته د ملت د کرکی

پیغور نـه ځان پـه آسانـه طریقه خلاص کـړی او د کابل رژیم د شرمیدلـو رجالــو له خوا د دی مهاجـرینو مسخره استقبال پخپله د هغـوی په اصطلاح د اشرارو د نهائی تسلیم یا په بل عبارت دغو لیدلو فراریانو د اعتذار او عفوی د غم لړلی تراژدی وروستی حلقه پای ته رسوی .

ښائی روسان پـه دی فکر کی وی، چی د ژینو خـبری او موافقی د افغانستان د قضیـی په باب د تولـو خواو پـه نسبت د مهاجرینو په برخه کی عاجل تاثیر وغورځوی او دتضمیاتو اومداخلو په عنوان دبل هرڅه نه مخکی د مهاجرینو د ستنیدو مطالبه جدی او عملی ونیول شی خو په دی تول ښه پوهیږو چی د مهاجرینو په بیرته ستنیدوکی د پاکستان د مسلمان ملت قناعت او اطمینان هم د دی فقـری د عملی کولـو یو مهم شرط دی زکه د ظالمانـه حل په صورت کی ممکنـه ده چـی د مهاجرینو د ستنیـدو مسأله د سیاسی حـل دوارو خوا تـه تور جانبی مشکلات را پیـدا کړی په تـیره د پاکستان او افغانستان مشترک، اوږده آزاد سرحدات او په هغوکی د مسلمانو قبائلو موجودیت د دی فقری د عملی کولو په برخه کی اساسی خنډ هم دی .

داسيء ده چي د هجرت سختو شرائطو وطن ته د ستنيدو هوس په هره مهاجره كورنى ژوندى ساتلى دى. ولى د بيرته تگ په وخت كى به هرى مهاجرى كورنى ته د هجرت پيام او هدف مطرح وى زكه چي وطن خوئى د همدى ارمان په خاطر د مجاهدينو دغرو ته وسپاره .

داسيء ده چي ښائى د بهرنى مداخلو په ارتباط د روسانو د مرحله ايزليږديدو په ارتباط په لمړى تطبيقى مرحله كى څه جدى جنجال نه وى ولى د مهاجرينو بيرته تگ او بيا د روسى فوځ او روسى‌نظام د موجوديت په صورت كى حتماً تطبيقى پړاؤ نه داسى مشكلات را برسيره كوى چي د روانو خبروكمزورى خوا ته د قضيى پالل نور هم‌گران كړى .

د روسى فوځ د موقت موجوديت او د تپل شوى رژيم قانونى موجوديت په صورت كى د مهاجرينو د آبرومندانه او آرام بيرته تگ خبره ډيره مشكله ده او بيا په سبانى افغانستان كى د تپـل شوى، رژيم سره د هغـوى او بدل بچپله ښيء چى د ژنيو د خبرو اترو وړى به شړى نشى. كيداى شى دا خبرى او دا موافقى پاكستانى طرف په يومسؤل موقف كى ودروى او د پاكستان همدردى مسألى ته غلط رنگ وركړى ولى په هيڅ

صورت کی د قضیی د حل د پاره مناسب اقدام نه کنټرول کیږی . دا چی د دغسی محتملی موافقی او د هغی د تطبیق په لړکی به د افغانستان مقاومت او قضیه کومه ستراتیژی نیسی او هلته په کوم شکل نیسی دا د سبا غمجنه کیسه ده چی سیناریوئی نن په ژینو کی رواله ده .

مونږ تـه د مهاجرینو د لیږدیدو فقره او د هغی په رابطه موافقه او تطبیق د ډیر تشویش ورهم نه ده ځکه چی پاکستان که څه هم د روسی استعمارچیانو د تهدید لاندی او د روسی فوځی اشغال نه متأثر جهت دی ولی د روسی استعماری پروګرامونو پـه ارتباط د افغانستـان د خلکو او قضیی سره تړلی سرنوشت لری چی همدا کار په پاکستان کی د هرنظام پالیسی د مهاجرینو د ستی پاللو او پتمن رخصتولو په چوکاټ خوندی ساتی .

## د خلکو د خوښی نظام

مونږ باور لـرو چی د کابل د ګوډاګی رژیم مـسره د پاکستان په خبرو اترو، موافقو او قراردادونو کی د ملت د خوښی د نظام خبره اصلا ځای نلری ولی د طرحه شویو اصولـو پـه لړکی مطرح اصل وه چی د خبرو پـه وروستیو

دری پړاؤنوکی ھعه د نظره لویدلی ښکاری البته چی د ملت دخوښی نظام بیادافعانستان غوندی یو ملت په برخه کی دخوښی او انتخاب لظام خبره د روسانو د پاره د خپلی پنځوس کلنی پالیسی او کار د هـدرتلو معنا ورکـوی اوکیدای شی د همدی تصور له کبله روسانو دغه فقره د خبرو په جریان کی ویتوکړی وی ولی د دی فقری په لیری کولو د یوی خوا دغو خـبرو د هر مناسب حل راوستو چانس د لاسه ورکړ او د بلی خوائی د خبرو اترو د ناکامی یا د ناکامو موافقو انجام هر چا ته ښه څرګنـدکړ زکه د هر تحمیلی او تپل شوی نظام په موجودیت کی قضیه او مقاومت په یو او بل شکل ادامه پیدا کوی او د ملت د پاره هر حل قناعت ببنونکی نه دی لکه څنګه چی د دغسی یو حل په وړاندی د خند پیـدا کیدو نه به و ښکاری چی په روانو خبرو کی د ځان په باب زمونږ د ملت ارادی او تصمیم ته په سپکه کتل شویدی .

## د افغانستان ناپیلی او اسلامی حیثیت

څلورم مهم اصل پـه دی خـبروکی د افغانستان د خلـکو د ناپیلی او اسلامی حیثیت دا عادی خبره وه چی

اوس اوس هغه په روانو خبروکی اصلا د ځایولو چانس نلری زکه چی د دغسی رژیم د بقاء یا د هغه سره د قضیی د غیر اصلی جهت د موافقی په نتیجه کی د راغلی نظام نـه د دغه حیثیتونو توقـع درلـودل اصلا د ځان غولـول دی داسی یو نظام چـی هغه د یو بیگانـه فوځ پـه مداخله را منځته شـوی وی او د ملت ۹۹٪ په سلوکی خلک ورسره مخالف هم وی څنگه کولای شی دغه دوه حیثیتونه ولری او یا د هغه سره موافقـه د داسی یونظام مقدمه جوړه کـړی چی د ملت دغه بایللی حیثیت بیرته اعاده کړی . کیـدای شی دغسی مسائل بحث شی یا بحث شوی وی چـی هغه د افغانستان د نوکـر رژیم پیلتوب اوکمونستی څیره پـه ملت او ټوله اسلامی او ناپیلی نړی وټپی ترڅو د ناپیلو او اسلامی هیوادو پـه کتار کی د روسی مشربه رژیمونـو په شمار کی یـو بل نوکر نظام زیات شوی وی .

داسی ښکاری چـی دا اصـل هم پـه پوره بی احتیاطی د اجندانـه لویدلی وی او نـور د سیاسی حـل پـه رابطه د دغـسی یو نظام راتگ خپله ټوله احتمالی فیصدی د لاسـه ورکړی او باید څوک د هغه توقع هم ونلری .

# مجاهدین او ملت

د روانو خبرو او خطری راتلونکی سیاسی حل په رابطه د ملت دریځ هم دا دی چی روسان باید افغانستان پریږدی مسأله حل ده ولی دا چی د ژنیو خبری به له ځانه سره همدا هدف ولری په دی رابطه په ملت کی ګنی روحیی موجودی دی او دا د سیاسي‌ډلو د ذهنیت ورکولو په نتیجه کی منځته راغلی هغه ډلی چی د اسلامی انقلاب او اسلامی حکومت په هکله یوه سچه علمی او دلولی مفکوره نلری بلکی هغوی په جهاد کی د نورو په ایماء او بیګانه ؤ په اعتماد جنګیږی هغوی د بوی خوا په تدریجی ډول په داخل کی خپل تشکل او مؤثریت د لاسه ورکړی او د بلی خوا . د بیګانه دوستانو له خوا ورته همداسی ذهنیت‌ورکړل شوی چی قضیه یوازی په بین‌المللی سطحه د لویو طاقتونو دتفاهم

پوری ترلی‌ده . دهمدی خایه دغه ډلی جبرا دسیاسی حل‌په هکله بایـد امیدواری وی او د دی نـه پرته د تصور او انګرینی تـول دروازی پری ترلی دی لکه څنګه چی د دی ډلو مفکوره ده هغسی د دی ډلوپوری ترلی وګړی هم فکر کوی چی د وطـن د آزادی او اسلام په باب به د دوی خارجی دوستان تصمیم‌نیسی! د همدی ځایه ده چی په عوامو کی ډیر هغه وګړی چـی د دی ډلـو سره سیاسی تـړه لری په هره مرحله‌کی‌د ژ‌ایو په خبرو باندی‌جدی شخوندوهی، فکر کوی د افغانستان د آزادی په هکله نړی تصمیم نیسی، ممکن په نن او سبا کی آزاد شی ان تردی چی د سیاسی حل‌مخالف فکر خاوندانو په باب په ظالمانه توګه فکرکوی چی هغوی ګواکی د افغانستان آزادی نه غواړی .

سره له دی‌چی په‌دی‌خلکوباندی پنځه پرله پسی‌کلونو تیرشول او د فلسطین درش کلنه قضیه د هغوی په وړاندی پرته ده خو دغه وګړی خوارکیان د سیاسی مستقل شعور د محرومیت او د خپل تقدیـر د طراحانو د سپارش له کبله نشی کولای آزاد فکر وکړی او د آزاد افغانستان پـه باب معقوله طرحه وړاندی کړی .

د دغو ډلو سياسي طراحان اصلاً خپله داسي طرحه نلري چي د هغوی د خپل واک ذهنيت محصول وی ز که چي نورو ته داميد سترگی درلودل او په نوروتکيه کولو دهغوی د خپلواک احساس مانی وررنگه کړی د همدی ځايه هغوی د دنيا او د دنيا دمسلط ذهنيت سره د اسيرانو په څير روان دی ، فکر کوی د هغوی هيواد بيگانه ؤ قواو نيولی بايد همداسی بيگانه قوی قوت هم د هغوی د پاره آزادی وگټی په داسي حال کی چي آزادی داسي څه نه ده چي يو ملت ته ئی نور او بيگانه ملتونه وگټی او کله چي بيگانه ملت د چا د پاره آزادی گټلی هغه پرته لدی چي استعمارئی بدل کړی وی بل هيڅ ئی لاس ته نه دی راوړی .

ولی د خپلواک ذهنيت نه محروم جهتونه په ملت کی په تيره په مجاهدينو کی دمره حساس رول نلری چي سری فکر وکری هغوی به د سياسي حل په رابطه ملت ددی مغالطی ښکار کری زکه د دی ډلو مقابل لوری چي اسلامی متعهد جهت دی هغه تر ډيره حده د جهاد په پيل او دوام کی ملت د ځانه سره راکښلی او د افغانستان په بابئی کم له کمه ملت ته داسي شعور ورکړی چي هغه د بين المللی

توطئو په وراندی حساس وی .

دا سیء ده چی د زینو تخنیکی او اصولی اشتباګانـو له کبله اسلامی خپلواک جبهت د ملت د ملاتـړ او اعتماد نـه پوره ګټه پورته نشوه کړای او تردیره حده هغه د ملت دغه بی کچه ملاتړ مغرور او د ملت په هکله ئی بی تفاوتی ته راوکیښن ولی بیاهم پـه ملت کی د سیاسـی شعور دودی او د خپـل روښانه راتلونکی بی نیازه سپاهیانو د موجودیت له کبله سری ویلی شی چی دغـه خامیانی به هم جهاد ځلی ته رسوی او ډیره ګرانـه ده چی ملت د دغو تخنیکی محدودو اشتباګانو په سرحد کی توقف وکړی د همدی ځایـه وینو چی په زرهـاو مجاهدین چی په زړه کی ئی انتقاد موج وهی ولی ټوپک د دښمن د ککری نه بلی خوا نه اړوی خپلی لاری ته ادامه ورکوی لکه څنګه چی دښمن هم د دغی فضا نه دګټی پورته کولو په منظور پـــه سلهاؤ امتیازات او تسهیلات د ملت د پاره برابر کړل ترڅو ملت د نفاق په مظاهـرو کی دوکه کړی ولی دغه حقیقت ته و سیدونکی ملت د دښمن شاته تګ ماته کړی او د هغه امتیازات او تسهیلات د یو بل دام دانه ګڼی او په پوره ښیبا کی په هغو پښه ږدی وراندی روان دی مشکلات

د پیوند ساتلو توصیه په وار وار ولولی لوئی!

د کودتائی رژیم وحشت او تشدد که د یوی خوا د ملت سره د رژیم تول پیوندونه وشلول د بلی خوا ئی د ملت ضمیر هم په داسی انتقام سمبال کړ چی اوس ئی د رژیم د مغروره جولاگیانو نه او خوا یونیم سل زره متجاوز فوځیان هم په لوخړه کی د سیاسی حل د کراری خوبو نه وینی.
مقاومت که څه هم په پیل کی داسی را روان وه چی ترکی، امین ... یوه هم داسی فکر نه کاوه چی د مرتجعینو تولگی به! یوه ورځ ملت بخپل ځنگ کی ودروی او په دی ډول به د هیواد ۹۰٪ په سلوکی د هغوی د تسلط لاندی راشی ولی په دولتی ماشین کی مسلسلو تصفیو وکولای شول چی باسواده طبقه د هغه وخت د روان محدود مقاومت په نسبت خوشبینه کړی او د فوځ نظامی قطعات یو د بل پسی د نظام په نسبت بی اعتماده او کله کله هم د مجاهدینو ترڅنگ ودروی لکه څنگه چی د بدگمانه او جبونه رژیم د اتهامونو، جرمو او قتل عامونو په نتیجه کی څوریدلی ملت د مقاومت د خلاصون او نجات وروستی لاره په تول جرأت او اخلاص په مخ ونیوله.

کالی خو د دښمن آسانتیاؤته سترګی نه ورارووی مرګ په موسکا منی خو د دښمن په تنازلو باندی پیسخند کوی .

سره د دی چی دغه استقلالی مزاج او په ځان باندی د اعتماد خوښیدلی شعور د انقلاب د لوی لاری مطمئن څوری دی ولی نه ښائی چی هغه په دی موجوده سطحه د یو آزاد کاملا اسلامی افغانستان د پاره کافی وګنو بلکی پـه دی لاره کی ډیـر څـه شته چی ملت لاس ته راوړی او ډیر څه شلته چی تحریکـئی ملت ته ورانـدی کـړی البتـه چی ملت اوس د دی استعداد پیدا کـړی چی چیره ریښتیانی خـبره واوری وی منی خو په هم دی جهادی دوران کی د هغه سره ډیرو د خدای په نامه خیانت کړیدی ان تردی چی ویلی شو په هغه انـدازه چی ملت زمونـږ د جهاد د پـرنیو قـربانیو «د داؤد خان د عهد شهیدانو» ته پردی په هاغه اندازه د پرونیو شهیدانو په میراث ناست وګـړی نن زمونږ ملت ته پـردی لکه څنګه چی پرون د ملت سیاسی کمزوری شعور هغه د خپلو خوا خوږو «داؤدخان د دوران د شهیدانو» په نسبت بی تفاوته کړ یوه همداسی نن په جانبی مسائلـو کی د را ښکار اسلامی تحریک منسوبین هم د خوا خوږی ملت په نسبت په یو ډول

تہل شوی بی تفاوتی کی کښېوتلی دی .

که اسلامی تنظیمونه د ملت سره همدا موجوديږوند وشي ساتلی او د هغه همدا بی کچه بلاتړ و پالی باور لرم هغه د همدی بهرنی توطئی د ناکامولو په برخه کی تر ټولو قوی او مهم عنصر دی .

څو ورځی مخکی چی د سیاسی حل په باب د ځینو تنظیمو سره په یوه جرګه‌کی د موضوع په باب بحث روان وه د یوه په اصطلاح اعتدال پسند تنظیم نمائنده د ژنیو دخبرو په باب وویل هغه څوک چی دغسی حل تردیدوی ملت او مجاهدینو ته به څه وائی ؟ خو مونږ د هغه په ځواب کی وویل هغه څوک چی دغسی حل او د هغه په نتیجه کی راتلونکی افغانستان ته سترګی په لاره وی هغه به ملت او مجاهدینو ته څه وائی ؟ مونږ ورته وویل زمونږ لوی مشکل هم دا دی چی د مجاهدینو په ورانډی د داسی تہل شوی تصمیم په باب اعتماد لوی خیانت دی .

په هر صورت د سیاسی حل په باب په ملت کی ګن تصوررونه موجود دی خو ترټولو قوی ذهنیت همدا دی چی موجوده خبری او د خبرو موجوده سیستم نشی کولای .

د یو آزاد افغانستان زیری د ځان سره ولری . که څه هم د مهاجرینو زیات مشکلات او په داخل کی د روسانو پرله پسی تجاوز او مظالم کله نا کله خلک د دی خبرو په‌نسبت خوشباوری کوی ولی د خبرو د حل وروستی امید «چی‌هغه ته لاره پیدا کول هسی اسانه کارهم نه دی» همداسی دخبرو په را روانو پراؤنو کی د خلکو د نظر نه پت ساتل کیږی هغه څه چی خلک‌ئی اوری هسی عامـه هنگامه ده اوبس . د قضی د حل اصلی او مطمئنه طرحه چی ملت او مجاهدین قانع کړی هغه د روسانو غداری پالیسی او دوکارو مشرانو په پوچو کتنو او سپیرو وعدو کی د نظره لویدلی حساب کړی، فکر کوی افغان ملت یوازی خپلو ورانو کورونو ته په ستیندو بنائی راضی شی !

سی‌ء ده چی د ۷ ٤ ساتی‌گراد په سوزیدلی هوا کی دخیمه لاندی هسکیږلی مهاجری کورنی د سختو کړاؤنو سره مخامخ دی او داسی کورنی به د افغانستان په باب ځانگړی تصور لری ولی کله چی هغه د خپل سرنوشت پـه باب وروستی پریکړه آوری هلته بـه حتمی د هغه اسلامی غرور او افغانی شهامت فیصله‌کوی نه د هغه مشکلات او کړاؤنه . په هغه

صورت به ملت د خپل اسارت پریکړی ته ځنګه چمتو شی چی د ځان سرمئی د مرګ پریکړه د مخوا کړیده. دلته ده چی د مشکلاتو په التقاطی افکارو حساب کونکی جهتونه دخلکو د تقدیر او سرنوشت د پریکړی په نسبت کوځهئی فکر کوی ځان مخپله په مغالطه کی غورځوی.

دا منم چی د بین‌المللی توطئو بهیر به د ملت ستونځی زیاتی کړی اوکله خو به دغه توطئی هغه په ډیرو اشتباګانو کی هم وغورځوی ولی هیڅ آزاد او پـه ملت مین وګړی به د خپل ملت پرضد د توطئو په مسیر کی ځان ونه‌غورځوی هغه وګـړی چـی د ملت د کـړاوجنی مرحلی او بین المللی توطئو نـه د او بدلی فضاء پـه بناء غواړی د افغانستان د آزادی قرارداد په واشنګټن او پاریس کی تسلیم کړی هغه مخپله شیء چی هغوی غواړی د خپل د اسارت بیه بدله او استعمار عوض کړی ولی موږ تـراوسه د دغسی قاطع دریځ په وراندی د ملت پریکړی خپله ملت ته پریږدو اوس‌یوازی د موجوده احزابو په دریځ لنډ بحث کوو.

**حزب اسلامی افغانستان :**

دی کی هیڅ شک نشته چی په حزب کی د افغانستانه

د داخلي بیگانه پرستانو او د افغانستان نه بهر د توطئو پــه لار اچونکو په نسبت ترټولو حساس او دښمن عناصر راټول شوي چي همدی ترکیب حزب ته د هرهغي پریکړی پــه نسبت چي په ملت تحمیل شي او د هر نظام پــه نسبت چي رجال ئی د استعمار په خوښه انتخابیږی او د هغوی سره ارتباط لري ځانګړی دریځ ورکـړی دی چـي ښائی دغــه دریځ په اساني هیڅ تغیر او بدلون و نه مني .

که څــه هم پــه دی حساس شعور کی حـزب یوازی لیدل کیږی ولی حقیقت داسی نـدی کیدای شي ډیر داسی افراد وی چي د حزب سره هیڅ تعهد ونلري ولی په همدی نقطه د هغه دریځ تائیـد وی او دا هم ممکنه چي د زمـانی سړی او تودی او د استعمار په نسبت د ملت د تجربی پخلی نورهم داسی ډیـر افراد د حزب سره پـــه دی انګیرنه او دریځ کی شریک کړی .

حکمتیار د حـزب اسلامـی امیر چـی د اتحـادونو په دوران کی ئی نور سیاسی شعارونه هسک تیت شول خودبیگانه له خوا د قضی د حل په نسبت ئی خپل شعار تر ډیره حده ټینګ ساتلی دی او هغه د دغی حلونو او خبرو پــه نسبت

نه دا چی په سیاسی تحلیل اتکالری بلکی زیات نه زیاته دغسی حلونه او تفاهمونه په ایدولوژیکی لحاظ هم ې ځایه او حرام گنی په دی باب مونږ لوستونکی د هغه رسالی‌ته چی «افغانستان د قضیې سیاسی حل» نومیږی دعوت کوو دلته فقط د هغه په سیاسی‌تحلیلو نوځه رنا اچووترڅو دحزب دریځ په دی باب روښانه شی .

که څه هم حزب د اتحادونو په دوران کی زیاتې صدمې ولیدی خو بیاهم د حزب دریځ په دی باب خپل قوت ساتلی او د خبرو اترو د لاری د افغانستان د قضیې د حل په باب د حکمتیار دریځ هاغه د پنځو کلونو مخکی دریځ ښکاری. ممکن په لهجه اولحن کی څه تغیر ولیدل شی ولی د محتوی په لحاظ د حزب مؤقف خپل وحدت ساتلی‌دی ان تردی چی د حزب دغه دریځ به تدریجی‌توگه او د اتحادونو په دوران کی د نوروتنظیمونو د افرادو په مواقفواوانگیرنو کی هم تفاوتونه را منځته کړی خو په هیڅ صورت دغه تفاوتونه د داسی محاسبی وړندی چی د نورو تنظیمونو په پالیسی کی ښکاره اثر پریږدی ولی دا چی د دغه تفاوتونو او دغو اثر ښښونو به حزب ترکومه حده فائده اوچته کړی وی

ویلی شم چی حزب د ځینو مصروفیتونو له کبله ونشوای کولای دغه افراد او زینی ډلی چی په دی رابطه تقریباً د هغه سره مشابه موقف لری د ځان سره په یو واضح موحد موقف کښی ودروی، که څه هم دغه نیمګړتیا تر حزب ته نه ده متوجه ولی بیاهم ترټولو زیاته حزب ته متوجه ده !

ترکومه چی د حزب موجوده پالیسی شیء د هر سیاسی حل «بیګانه پریکړی» په باب د حزب دریځ کافی دی او ممکنه نه ده چی د حزب د پریکړی او موافقی پرته څوک د افغانستان د قضی په باب یو طرفه پریکړی وکړی ولی دا طبیعی ده چی په دی موقف کی د حزب ځانګړتیا او یوازی توب یوه ورځ نه یوه ورځ د حزب مشکلات څو برابره کوی او داهم یقینی خبره ده چی د ځینی نورو ډلو سره د حزب د دریځ په یوکولو به د توطئو د توری مخ پټ کړیوه .

البته چی د حزب غوڅ دریځ پخپله دا ښیء چی هغه به د امتحان لوی دوران ته لیږدوی او په دی باب به هغه یوه لویه معرکه په کاراچوی ولی څوک دا نشی ویلی چی د دغی لوئی معرکی یو بعدهم په دی رابطه د مشابه احزابو

سره د یوی مشترکی پالیسی او متحدکار طرحه ده .

کیدی شی د مشترکی طرحی مشکلات په حزب کی هم موجود وی خو د بهرنیو جهاتو سره هم شته چی وخت او زمانه به ښکاره کړی چی د آزاد افغانستان په باب د کار دغه بعد د چا د بی تفاوتی ښکار شو !

حزب د روسانو د برالاتیری وروسته او مخکی په افغانستان کی هیڅ رژیم قانونی نه پیژنی او د هجوم وروسته هغه په افغانستان کی دوه جهتونه مطرح گنی روسان اومجاهدین هر هغه پریکړه چی د نورو خواؤ له خوا د دی قضیی به باب وشی غیر عادلانه او غیر عملی ده او «د روسانو سره هم د بحث موضوع پرته لدی چی خپل فوځ د افغانستان څخه وباسی بله نشته» د ژنیو د روانو خبرو اترو په هکله حکمتیار وائی :

«دا خبری اتری له وخت مخکی پیل شوی که «چیری روسیه په دی خبرو کی مخلص وای نو هغه به د خپلو ظالمانه حرکاتو څخه لاس اخستی وایی :

۱-

۲- د تکبیر د مجلی سره د حکمتیار مصاحبه .

که څه هم داد وخت نه مخکې ده خو بیاهم حکمتیار د روسانو د نظامي حضور په لړکې هر ډول تفاهم او خبرې محکوموي د همدې ځایه دژنیو د خبرو په رابطه د مجاهدینو مشرانو په منځکې ترټولو بدبین مشردی څکه هغوی باور لري چې روسان د دې خبرونه دا هدف لري چې ملت تحمیق کړي او د روس په مقابل کې موجوده کرکه را کمه کړي او د دنیا خلکو ته کاذبانه امیدواری را پیدا او په دې لړکې دا فرصت پیدا کړي ترڅو خپله موضع نوره هم مستحکمه، قضیه د نظامي لاري د څان په ګټه‌پای‌ته‌ورسوي.

حکمتیار د همدې ژوری کـرکې له امله تـل خـپل مواقف پـه ډاګه کړي، عقیده لري «چې د افغانستان قضیه د دې وړده چې په مورچلونو کې حل شي» د همدې ځایـه هغه تل په دې ټینګار کـوي چې «د روسانـو د بشپړ وتلو پورې مقاومت ادامه لري ترڅو په افغانستان کې یو بیګانـه فوځي موجود وي مجاهدین به سنګرونه پرې نږدي» دهمدې ځایـه هغه پـه پوره تلوسـه د هغې ورځ انتظار باسي چې «روسان د خپلو فوځونو راایستل د یوی اشتباه په توګه تسلیم کړي» .

د روسی فوځ د وتلو په لړکې د سولې د قواؤدمفکورې په هکله حکمتیار په هاغه اندازه کرکه ښې لکه‌چې د روسي بیګانه فوځ په هکله‌ئې چې ښیء هغه خپله دغه کرکه توجیه کوي‌وائې «مونږ د سولې د قواؤ د تجربې نه چې‌ځینوهیوادو ته لیږل شوي پوره خبریو چې دغه قواوې د څه د پاره لیږل شوې او څه نتائج‌ئې له ځانه سره لرلې دي ؟ هغه کله چې د روسي فوځ د پلمو په برخه کې چې وائي مونږ د سولې د پاره راغلي یو فکر کوي د سولې قوا وې همدا رول شي لوبولی . حکمتیار فکر کوي چې «اصلا د افغانستان قضیه داسې نده چې د سولې قواؤ را لیږلوته اړه ولري زکه د دې قضې کلې د روسانو په لاس کې ده که هغوی خپل فوځ د افغانستان څخه و غواړي د هیڅ خند سره نه مخامخ کیږي» .

د روسانو له خوا د خپلو قواؤ داستلو د تقسیم‌الاوقات طرحه د حکمتیار له نظره یوه مسخره طرحه ده هغه استدلال کوي چې« آیا په افغانستان باندې د تجاوز په وخت کې روسانو تقسیم الاوقات ته ضرورت درلود ؟ په داسې حال چې په یوه ورځ کې‌ئې وکولای شول چې کابل اشغال کړي .

د یونیم کال مقاومت وروسته رژیم او روسان بخپله بخپل وزن ښه وپوهیدل . ولی وخت تیروه زکه مقاومت د کابل په شاوخوا کی روان وه په هیڅ فوځی واحدکی دنظام اعتماد نوه پاتی په رژیم کی د ننه بدلون او د ملت سره د هغه په پالسیو کی بدلون او را ستنیدو د هغه لنډ عمر نشو اوږدولای زکه د کیو او کیوالو سیمو نه د رژیم د جاسوسانو لمن تموله وه په ملت کی نور د هغوی ځای نه وه د فوځی مصونو کلاؤ او قشلو پرته کمستانو نشوای کولای آزاد ژوند وکړی هغه وه چی مسکو دا ښه وپتیله چی د سره فوځ په را لیږلو د افغانستان د نا آرامه اوضاع د کنترول ابتکار په لاس کی واخلی ولی د روس فوځی مداخلی د یوی خوا د مقاومت نه بی تفاوته وکړی هم د مسؤلیت په درشل کی ودرول او ملتئی تمول د مقاومت په خط کی را روان کړ لکه د بلی خوا چی د خلکو بی دریغه مقاومت سور فوځ په هغه امتحان کی وغورځوه چی د مسکو مزدور رژیم پکی صفر اخستی وه .

کابل ته د روسی فوځ راتګ مقاومت ته نوی رنګ ورکړ زکه د سره فوځ په حضور کی د کمونیزم نیمه نسکور

د سیاسی حل د تطبیق د پاره د «امنیتی پولی»دطرحې.
پـه باب حکمتیار تـرټولو زیـات غـوره فکر کوی چې
اصلا په دی باب د افغانستان د تجزیې دسیسه ښکاره او
د دغسی طرحې پـه ارتباط وائی «مونـږ به هیڅ‌چا ته د دی
اجازه ورنکړو چې زمونـږ هیواد تقسیم کړی او هیڅوک هم
نشي کولای د افغانستان وحدت ته صدمه ورسوی» . ان دا
چې هغه د پاکستان د حکومت پـه رابطه هم تصور کوی
چې پاکستان بـه هیڅ وخت د دی لـوی اشتـباه مرتکب
ونگرځی ، د دیـورند پـه کـرښه د روسانو له خـوا اعتراف
نشي کولای په پاکستان باندی د روسی تجاوز مخه ونیسی
لکه څنګه چې د آمو مسلمه کرښه د عدم‌تعرض هغو تولـو
معاهـدو او مسالمت آمیـزی دوستی ونشوای کـولای په
افغانستان باندی د تجاوز مخه ونیسی» .

په قبائلو کی د خاد او «کی جی بی» د فعالیتونو پـه
باب حکمتیار صاحب د افغانستان د تجربې په ارتباط عقیده
لری چې هغوی به یـوه ورځ تـول د روس پرضد جنګیږی
هغه زیاتـوی «زه باور لـرم د کرښې دیخوا قبائلو کی دوسلې
توزیع هم‌اغه نتیجه لاس ته راوړی چې د افغانستان پـه

وردگو پکتیا ... کی راوړه .

حکمتیار د روسانو وتل د قضیی وروستی حل نه گڼی . هغه عقیده لری چی جهاد د روسانو د تجاوز نـه مخکی پیل شوی او هغه پـه دی خاطـر پیل شوی چی پـه هیواد کی د هر غیر اسلامی نظام مقابله وکړی ترڅـو پـه هیواد کی سل په سلوکی د اسلامی نظام تهداب کیږدی .

په دی باب چی په هر سیاسی حـل کی روسان نشی کولای پـه افغانستان کی روسـی ضد حکومت تسلیم کـړی حکمتیار دا مطلب د روسانو تشه پلمه گڼی وائی همداروسان نه دی چی «خپل دوستان ظـاهر شاه ، داؤد شـاه ، ترکی ، امین ئی یو د بل پسی ختم کړل» که چیری د دښمـن او مخاصم حکـومت نـه د روسانـو مطلب دا وی چی د بل کوم بین‌المللی قدرت پوری اړه ونلری نو د دی تضمیـن یوازی مجاهدینو سره دی نه د مذاکراتو په میز کی. دا چی ویل کیږی د روسی فـوځ د وتلو پـه صورت کی بـه په افغانستان کی راتلونکی سیاسی خلاء څوک ډکوی په دی‌باب حکمتیار که څه هم تجربه‌ئی نه تسلیموی وائی موجوده‌ائتلاف کافی دی چی د یو منتخب حکومت د پاره زمینه جوړه کړی.

په هر صورت د جهاد په موجوده مشرانو کی حکمتیار ترټولو تود او قاطع دریځ لری . که څه هم په سیاسی لحاظ د دی قاطع او تود دریځ د پاره په ملوکی سل قانع کونکی ژوندی ثبوت نشی وړاندی کولای خو هغه په دی باب د خپلو قوی جبهاتو او زړورو مجاهدینو په ملګرتوب یوخ باور لری، که څه هم د مجاهدینو او جبهاتو له لحاظ د حزب اسلامی افغانستان مجاهدین او جبهات زیات موحد او ورته موقف لری او د راتلونکی سیاسی نظام او د قضی د حل په باب نژدی او روښانه نظریات لری او په دی لحاظسړی کولای شی دا حزب ترټولو قوی ، با بصیرته، قربانیو ته چمتوډله تسلیم کړی ولی دا چی په سیاسی کشمکش کی د هغوی په باب د نورو احزابو غیر دوستانه موقف په ترکومه حده د هغه وحدت او استحکام د سیاسی انزوا د میچنی لاندی و دلوی، دا د زمانی په غاړه امانتخبره ده.

که څه هم سیاف صاحب په سیاسی لحاظ حزب ته ورته دریځ لری خو متاسفانه چی هغه سره په دی روحیه جوړ قوی تحریک او د سختو ورځو ملګری کم ښکاری ولی بیاهم زمانه به خپله د سیاف او حکمتیار د اوچتو شعارونو

مابقی داستان تـه لـورهم فـرصت ورکوی ترڅـو د سیاسی،
حل راتلولکی کړاؤ چی څهله د یوکمزوری امتحان ته پرته-
بل څه نـه دی د هغوی د اوچت او قاطع دریځ پـه باب-
د ځان سره څه تنازلونه او څه تحولونه لری ؟

داسیء ده چی حکمتیار د قضی دسیاسی جهت پهبرخه-
کی د استاد سیاف په راتگ او مطرح کیدو یو قوی ملگری-
ترلاسه کړ ولی دا چی پهدی باب د هغوی طرحهاوپروگرام
د هماغی بی تفاوتی ســره مخامخ دی چی د سیاسی مخـالفو-
جهتونو سره دی، سری ته دا روحیه ورکوی چی د قضیپه-
باب سیاسی دسیسی په ډیره آسانی کولای شی دغه پهظاهر
متحد شعاره ملگری بیل بیل قربانی کړی .

داسیء ده چی د جمعیت د مشر استاد ربانی پـه ډله-
کی هم داسی وگړی شته چی په دی برخه کی د استادسیاف
مشابه تصور لری ولی تاریخ ډیرکم بی مثله افکارو اورجالو
ته د دی چانس ورکوی چی د سیاست په عالم کی دهغوی
خبره هم کله چوکی ته ورسیږی .

---

۱- شهادت شماره ٥٦ ، ۳۱ ثور ٦٥ کانفرانس مطبوعاتی
کراچی .

منم چي د استاد رباني د پاره دا خبره ډيره گرانه ده چي هغه دي جمعيت په داسي جهت کې رهبري کړي چي د سياسي حلونو په رابطه د تسليمي او يا قاطع ردمعناولري ولي دا د استاد ابتکار دی چي څنګه کولای چي دوچې مفکوري خاوندان په يو سياسي اغفال کې راضي وساتي ولي ددی نه هيڅ انکار نه دی په کار چي حالات اوجريانات په خپله استاد د دی شړيدلی موقف نه يوی خوا ته څنډي ته باسي او هلته په بيا د وخت فيصله وی چي استاد به بې جمعيته پاتي کيږی او که جمعيت بې استاده !

که څه هم مولوی خالص د حزب اسلامی په عنوان تبارز وکړ ولي متاسفانه چي د دی تنظيم ځيني عمده خصوصيات‌ئې که دلاسه نه وی ورکړی صدمه خوئې حتماً ليدلی . د دري‌گونی اتحاد سره د هغه دوستانه مناسباتو هغه د ملک او هيواد په رابطه د يخواني قاطع دريځ نه ليری کړی ولي هغه په هيځصورت داسي نشي‌کولای چي‌دسياسي حل په رابطه د استاد ورته موقف ونيسي‌داسيء ده چي کله کله کيدای شي هغه د استاد په شان تصور ولری مشابه

---

٢- شهادت ٣-٥٣ . ٣ دلو ٦٤ .

مواقف ونیسی ولی د هغه په تنظیم کی د دې تصور خلوندان ډیر دی چی د استاد سیاف او حکمتیار د مشابه موقف په نه نیولی مولوی صاحب د مشکل سره مخامخ کړی او د بلی خوا خپله مولوی صاحب هم د خطر په اخرینی تصمیم کی ممکنه نه ده چی د تسلیم جهت انتخاب کړی .

مولوی صاحب خالص په هیڅ صورت کی د سیاسی حلونو په نتیجه کی د راغلی افغانستان د چوکات د پاره جوړ نه دی ولی د حکمتیار او سیاف سره دهغه تیر حساسیتونه دی چی د هغه دریڅ او مواقفئی د تذبذب سره مخامخ کړی

داسیء ده چی په طبیعی لحاظ هم مولوی صاحب نشی کولای په یو دریځ کی ترډیره وخته پاتی شی ولی دا ټوله خبره کیدای شی د قضی په جزیاتو او تفصیلی اړخو پوری اړه ولری ، ممکنه نده چی هغه دی په کلی توگه د یو تحول مندونکی نظر او دریځ د پاره چمتو شی .

دا چی سیاف او حکمتیار نشی کولای خپل مشابه دریځونه به یوه واحده پالیسی او په یو واحد صف کی و او بدی، مولوی صاحب د دی چانس لری چی د دغسی مشابه دریځ او موقف نه معذورو منل شی .

عوامل چې هرڅه وی د استاد ربانی اومولوی‌خالص سیاسی مواقف خاصته د اسلامی او ملی تنظیمونو په رابطه د هر تحول په هکله د افغانستان د یو اسلامی تحریکی اتحاد چانس هغومره کمزوری کړی لکه څومره چې د استاد سیاف او حکمتیار خپل منځی کمزوری اعتماد په دی لیاره کی خنډ گرځیدلی دی .

رښتیانی خبره :

دا چې د سیاسی حل د جدی مطرح کیدو او د هغه د تطبیق په وړاندی د مقاومت د ډلو د واقع کیدوپه صورت کی به اسلامی تحریکونه بالاخره متحد شی او یا به هغه په نورو تجزیو محکوم شی او یا به د یو بل مشخص تحول په درشل کی دریږی دا د خپل وخت خبره ده خو حالات‌داسی ښیء چې هر هغه حل چې د پاکستان د حکومت د حمائی او ملاتړ نه برخمن وی ممکن د افغانستان زیات اسلامی تنظیمونه او شخصیتونه هلته یوی لوئی اشتباه کولوته تشویق او یا مجبور کړی خاصة هغه ډلی چې سردارانو سره خپلی سیاسی پولی نشی تړلی او د هغوی د تاثیر لاندی روحیه خپلو افرادو ته ورکوی .

په دې کې شک نشته چې د ځينو په مبالغه ولاړو شعارونو او مواقفو به د ځينو نورو اعتدال پسندو ډلو او رجالو د پاره د جذب او توجيه زمينه برابره کړيوي ولې دا هم حقيقت دی چې د اعتدال په عنوان تسليمی او ماتې خوړلی ابتکارونو او نظرياتو له مخې د مبالغو او خيالی مواقفو خاوندانو د بازار رنګ جوړ کړيدی .

په غوڅه توګه بايد ووايم چې د افغانستان د آزادی د پاره په واقعيت ولاړ زهنيت او تصور ټخپله د همدې تسليمی او هوسې «په مبالغو ولاړ» دريځونو اوروحيو قربانی شوی او د همدې ځايه ده چې د سياسی حل په عنوان راتلونکی دسيسی مخه نه مبالغه او نه دغه ماتې خوړلی موقف نوی شی .

داسې ده چې د هيواد د راتلونکی په باب قاطع او غوڅ دريځ کولای شی مونږ د ډيرو تکرار شويو اشتباه ګانو څخه وژغوری او زمونږ د وطن ټول دښمنان پردی قانع کړی چې زمونږ د ملت راتلونکی خپله ملت نه وسپاری ولې هيڅکله هم غوڅ دريځ او روښانه پاليسی د دی معنا نه ورکوی چې مونږ د نورو جهتونو د ملاتړ او تعاون څخه

بی نیازه کړی لکه چی لیدل کیږی. لکه څنګه چی د نورو د تعاون او ملاتړ په پلمه د هیواد د راتلونکی په باب د هر دښمن دروازی ته سترګی او لاس نیول هغه هم د اعتدال بینی او واقعیت په عنوان هغه زهر دی چی دا ملتئی څو واره په سیاسی لحاظ مسموم کړی او تراوسه د دی هیواد د مسلمانو خلکو تصمیم او آراده د استعماری قدرتونو سره په مبارزه او جنګ کی د همدغه مصلحتی او اعتدال پسندانه توجیهاتو قربانی شوی او په سلهاؤ پردو- کیئی د استعمار بقاء او دوام نغښتلی دی.

زینو سره داسی فکر دی چی د هغوی د مخالف جهت نظریات «البته د ځینو واقعی ملحوظاتو له مخی» دافغانستان د آزادی د پاره کافی نه دی په داسی حال کی چی هغوی د نظریاتو او افکارو په هغه جهت اتکاء لری چی نسبته د قضیی د حل د پاره ضروری او حتمی لیدل کیږی ولی په هیڅ صورت کی د هغوی نظریات او افکار هم د افغانستان د آزادی د پاره د یوی بشپړی طرحی معنا نلری داسی ډیر نور مهم افکار او طرحی چی د افغانستان دآزادی په لاره کی د هغو ضرورت او ایجاب حتمی لیدل کیږی بیا

د همدی باوری ورونو په طرحه کی ځای نلری .

کیدای شی ډیر سیاسی لیډران د افغانستان آزادی ، د خپلی محتملی حکمرانی د بسای چانس یاد خپل بخت په اساس و غواړی ولی د ملت او اسلام د لاری واقعی مبارزین چی معمولا سیاسی کرغیړن اهداف نلری هغوی باید په دی باور ولری چی د بای چانس دلاری زاتلونکی آزاد افغانستان هغه د امان الله او نادر خان په منځکی بیخ ختلی افغانستان دی چی ترننهٔی استقرار او استقلال پیدا نکړ .

زه باور لرم چی د روس پرضد روانه جګړه بـه د تل د پاره روس یوه نوی تنازل او نـوی ماتی ته را کاږی ولی څوک هم د دی نه انکار نشی کولای چی زمونږ د انقلاب زیات قوتونه «البته د ځینـی تاریخی او محیطی خـامیانو له کبله» بخپل منځکی مصروف دی چی دا کار د روس د پاره په هر پړاؤکی یوه کاذبه امیدواری پیدا کوی او د قضی او مشکل د واقعی حـل پـــه هکلـه هغه پـه ویـره او شک کی غورځوی .

دلته دا ته کلن انقلاب په دوران کی ملت او مجاهدینو ډیر تجارب ترلاســه کړی ولی ترکومـــه چی زه فکـر کوم

شعارونه په زمکه ولویدل او د کمونستانو د حیثیت میزان ئی منفی سلوته ورسوه . په کابل کی ښځو او ماشومانو دا خبره درک کړه چی د پرچم او خلق‌گوند د خپلی عقیدی او عزت ترخنگ خاوره او ملت هم خرځ کړل .

لکه د بلی خوا چی د روسی سره فوځ موجودیت په افغانی شکیدلی اردو باندی وروستی غذار وکړ او نور په افغانستان کی د سره فوځی ترخنگ په افغانی یونیفورم کی ننوتی صاحب منصب خپله جنگی روحیه او مورال له لاسه ورکړه زکه د روسی فوځی ترقوماندی لاندی روان فوځ او جنرالانو ته د ملت په سترگو کی د خندا او پیسخند نه پرته نور څه پاتی نشول .

د همدی ځایه د افغانی فوځ د پاتی واحدونو ٦٠٪ په سلوکی تسلیم او یا مجاهدینو سره یوځای شول او د پاتی فیصدی نه لس په سلوکی د کرختی تیښتی د لاری دلته او هلته فوځ او پوستی مخ په پاکستان پریښودی لکه چی لس په ساوکی ئی همدا اوس هم د مجاهدینو سره د ارتباط د لاری دلته او هلته مجاهدینو ته ذخیره او معلومات ورکوی .

دا د یوی خوا د بلی خوا کله چی روسی فوځی ته

همیشه د آینده په باب زمونږ د ملت افکار دآنی شرائطو له مخی توجیه ، کیږی د ملت د راتلونکی په برخه کی ژوره ستراتیژی چی د واقعیتونو د تسلیم د میچنی نــه دلـول شوی وی وجود نلری، چی داکار د بلی خوا د روانی سیاسی ډماکی او همدی راتلونکی سیاسی دسیسی به ارتباط د ملت آگاهی اوچمتوالی ته نه تلافیکیدونکی صدمه رسوی. د همدی څایه دلته فقط د نــورو د طـرحو ، ستراتیژیـو پریکړو او پیشنهادو پـه هکله د نرسی تسلیمی او د وچ رد نـــه اخوا داسی طرحه چی زمونږ دښمنان په مشابه موقف کی ودروی یا د مجاهدینو د منظم موجودیت ممثل شی وجود نلری چی البته د همدی نیمګړتیـا له مخی ده چـی د مجاهـدینو پـه منځکی د تعاون او همکاری جدی طرحه چی د خپل منځی مصروفیت مخه ونیسی وجود نلری ....

که څه هم جبهه نجات ملی او محاذ په سیاسی لحاظ یوازی د څو کـورنیو عامیانـه سیاسی موجـودیت دی چی د تنازع للبقاء له مخی ئی هغه وخت د یو سیاسی تنظیم په عنوان تبارزکړی چی دغوکورنیو د څولسیزو په دوران کی خپل د لاس لاندی مصلحت شریکه میراثی رژیم دلاسه

ورکړی او د همدی خالیگاه ډکولو په خاطر ده چی ددغو ډلو سیاسی اتجاه کوم او بدلی منظم فکر نلری په دی ډلو کی د قیادت له خوا د کورنی د نفوذ بقاء ، په راتلونکی نظام کی د هغی سیاسی ونډه او د قاعده او لاندی خلکو له خوا د یوی سیاسی پناگاه خبره ده چی د دغو ډلو قیادت او قاعده ئی تشکیل کړیده .

د همدی ځایه ویلی شو چی افغانستان ته ستنیدل او هلته د یونظام مشخصات د دی ډلو د نظره فقط په راتلونکی نظام کی د کورنی د نقش او رول په تله تلل کیږی په دی رابطه هر محلی او بین‌المللی تضمین کولای شی د دی ډلو موافقه او ملاتړ په اسانه ترلاسه کړی .

منم چی حرکت انقلاب اسلامی د پورتنیو ډلو سره د هدف او ترکیب له مخی ډیر فرق درلود او دغه حرکت ترډیره د ملت د متن نه شروع شوی ښکاریده او په همدی رابطه هغه په ملت کی د یو قوت په حیث مطرح هم وه ولی د بده مرغه د دی تحریک په منځکی د یوی بلی‌نفوذی کورنی د رشد کشمکش چی بالاخره د څو مسلسلو تصفیو غونډئی را منځته کړه او د هغه تحریکی سیاسی موجودیتږئی

محدود کړ اوس هغه زيات د يوی نفوذی کورنی په شاوخوا کی د عاطفی او مصلحتی افرادوگنه گونی ته ورته معلوميږی ځکه چی د همدی تصفيو په لړکی د اصوليت او قانونيت پلويان يا استفراغ شول يائی د سازش خوا ونيوله .

که څه هم بنائی دغسی ورته تحول «کورنی نفوذ» په نورو ډلو کی هم پيل شوی وی او ځينیئی تر تاثير لاندی راغلی خو د دی دری ډلو په رابطه بايند سړی دا قضاوت وکړی چی هغوی فعلا د کورنيو ممثلين دی شاته پرته قاعده يا د عملی او منطقوی حساسيتونو يا د بی بصيرتی له مخی په هغو کی تشکل موندلی ، دامسی فکر او مبادی چی د هغوی لاره وټاکی وجود نلری .

په دی حساب هر هغه حل چی د دی کورنيو نفوذ او حيثيت تضمين کړی او هر هغه نظام چی د دی کورنيو فرمائشات ومنلی شی د دی ډلو د نظره د ملت په گټه او د قضی د پاره ترټولو ښه حل دی خو هيڅ کله دا د دی معنا نه ورکوی چی د دی ډلو سره ملگری محدوده قاعده به پسه طويل المدت کی د مخالفينو پسه جهت کی نسه واقع کيږی .

د بلې خوا که څــه هم په دې ډلـو کې ډېر مخلص وګړي دي خبرې دوکه کړي چې البته دغـه ډلې زيات مذهبي رنګ لري ولې حقيقت دا دې چې پـه دې ډلـو کې د قيادي رجالو او د هغوی د ارتباطاتـو له مخه تـر ټولو عصري غير مذهبي رجال رول لـري او د قاعـدې له مخې بې سواده ملتزمه طبقه ځـای په ځای شوې په دې معنا چې چې د غربي‌تعليم‌اوسياست پلوي رجال‌ئې غلني!قيادت‌تشکيلوي او بيا د همـدې سيستم تکفير کونکي وګړي‌ئې قاعده تمثيلوي چې په دې لحاظ متناقض جهتونه هلته يو بـل اميدوار او يو بل تقويه‌کوي. که څه هم شايد دغه تحليـل د حرکت انقلاب باندې په کمزورې ډول تطبيق شي خـو څنګه چې د هغه سياسي جهت نيونـه ښيء ټول د افغانستان د آزادي په نسبت د بيګانه ؤ لاس او خوښې‌ته سترګې په لاره ښکاري.

دلته دا خبره ضروري ده چې په دې‌تنظيموکې د همدې اساسي مسألې په رابطه د قيادت او قاعدې ترمنځ څه غلط فهمي موجودې دي هغه دا چې د دې ډلوسياسي پاليسي په واضح او ښکاره نګاتونه ده ولاړه هغه څه چې ملت ته وائي اصل حقيقت نه دی !.

# راتلونکی افغانستان

د دی نه هیڅوک هم انکار نشی کولای چی‌دمقاومت په دوران کی هغه عمده اوښکاره تحولونه چی د ملت پرفکری سیاسی ، اجتماعی بالاخره روحی ژوند او روابطوکی رامنځته شوی هغه به د دی مظلوم ملت په راتلونکی او راروانو نسلوکی د ثبات اومقاومت روحیه نوره هم‌محکمه کړی،که څه هم دغه فکری ، سیاسی ، اجتماعی... بدلونونه د مقاومت او انقلاب د عملی بعد په نسبت بی‌خی‌کم دی ولی په راتلونکی کی یو منظم فکری حرکت او یو په ځان متکی واحد قیادت کولای شی هغه د عملی انقلاب موازی خط تـه ورسوی خو د دی ټولو حقائقو سره سره چـی فکری او اجتماعی ... بدلون د یو ملت د اصالت او مقاومت بنیادی شرط دی دا

هم باید هیرنکړو چې سیاسي‌تحول یا په ملت کې د یوآگاه ، په ځان متکی نظام راوستل هم‌گران کار دی لکه څنګه چې هغه د دی فکری اجتماعي ... انسان جوړونکی حرکت د نتیجه گیری اساسی شرط دی .

دا سوال چې راتلونکی افغانستان یا د دی خبرو په نتنجه کې راروان افغانستان به څنګه افغانستان وی او هغه به د مقاومت نه مخکی افغانستان سره څه تفاوتونه ولری ؟ د دی سوال ځواب اصلاً د راتلونکی افغانستان د سیاسی نظام او د هغه د قیادت د تشخص پوری اړه لری. دکومه ځایه چې د مقاومت فکری او اجتماعی بنیادونه ئې ایجابوی د دغسی یو سیاسی نظام او قیادت لاره خو د مقاومت د سیده خط ادامه ده ترڅو د دی لاری په اوږدوکی د یوی خوا د راتلونکی نظام او قیادت په نسبت د مقاومت دغه د حوصلی نیمگړی تجربه بشپړه‌کړی او په دی‌کړ پنه لارکی د ایمان خاوندان وازمیل شی او د بلی خوا زمونږ دښمنان هم په دی قانع شی چې هغوی د افغانستان مشکل یوازی ملت سره د تفاهم دلاری نه حل‌کولای شي، هلته په طبیعی دول سیاسی راتلونکی نظام او قیادت د مقاومت په فکری

او اجتماعی خط کی پاتی کیده او هغه ته د ملت یو ممثل نظام او قیادت ویلی شو ولی په دی صورت کی چی دا بی وخته او خطرناکی خبری روانی دی د راتلونکی نظام په هکله د اطمئنان او اعتماد دلائل شارته تللی دی !

ولی دا خبره چی دراتلونکی افغانستان په باب به روانی خبری که د سنګر اراده غالبیږی او په دی اخ وډب کی به د راتلونکی افغانستان پریکړه د دبلوماتانو د بکس نه راویستل کیږی که د مجاهد د چانتی نه دا هغه حقیقت دی چی د خبرو او ډغرو راتلونکی اخ وډب د امتحان پوری اړه لری . خو د کومه ځایه چی «د روانوخبرو افغانستان» پوری اړه لری دا یو څرګند واقعیت دی چی د دی ډول افغانستان په جوړیدو کی د ملت اراده د خیله نه ده که څه هم د ملت مجبوره ورځ پکی اساسی رول ولوبوی لکه څنګه چی د خبرو جریان او تکنیک ښئی ښائی راتلونکی افغانستان کی د «مقاومت د ورځو افغانستان» خصوصیات او ځانګړتیاوی وجود ونلری او په هغه صورت کی چی د مقاومت د ورځو فکر او روابط پاتی هم شی ښائی د نقشی او پروګرام سره سم په تدریجی یا فوق العاده توګه له منځه ویوړل شی ز که

د خبرو په جریان او پای کی د مقاومت او جهاد بنیادی اهداف د راتلونکی افغانستان له مخی نه په کرار کرار لیری کیږی .

ډیره گرانه ده چی سړی د روسانو په موافقه جوړ افغانستان کی د آزادی او اسلام یعنی زموږ د ملت تاریخی حق د ثبوت او بقاء په هکله اطمئنان پیدا کړی د دی پولی نه او خوا سړی نــه پوهیږی چی روسانو د خوا د مطرح شوی افغانستان ځیره به څرنکه وی ولی هغوی غواړی د افغانستان د پرونی افغانستان غوندی «چی پرنگیانو پکی امیران بدلول» ځانته یو «روسی افغانستان» جوړ کړی ترڅو د راغلی رژیمــونـو او حاکمانـو د بدلولو تکمه د مسکو تیکمارانو په لاس کی وی .

د دی خبری سپینول گران دی چی آیا د روسانو له خوا دغه طرحه شوی سیاسی او سولیز حل به د مقاومت د ختمیدو پوری ادامه لری او که بـه د یوه نـوی رژیم ترحده چی د هغه سیماهم نامعلومه ده وراندی ولاړ شی خو دا خبره پوره سپینه ده چی د مقاومت په نتیجه کی د طبیعی اسلامی نظام ویری روسان پـه دی هڅه کی غورځولی دی

چې د هغه لار مخکې له مخکې غوڅه کړی دا چې هغوی به د افغانستان په ارتباط د روس د بدنام موقف د پاره څه پرتوګ جوړوی دا د هغوی «روسانو» د پاره د وخت او شرائطو خبره ده ځکه روسانو ته په اوسنیو شرائطو کې مهم شی د افغانستان د قضې په رابطه د افغانستان د ګاونډیانو بیا د نړی د حکومتونو قانع کول دی او دا کار د روسانو د پاره ځکه ډیر آسانه ده چې نړی ته مهم خبره د روس فوځ وتل دی ولی زموږ د ملت او قضې د پاره که څه هم د روسانو وتل مهم عنصر ګڼل کیږی او د قضې یو مهم بعد حل کیږی ولی حقیقت دا دی چې د قضې غوټه د روسانو په وتلو نه خلاصیږی هغه چې د دی غوټې د پرانستو رمز پکې نغښتی دی هغه زموږ ملت ته د دی حق حاصلیدل دی چې پخپله خوښه او اراده د خپل هیواد د پاره حکومت انتخاب کړی او د دی هیواد واګی داسی چاته وسپارل شی چې هغه د خپل هیواد په وړه اولویه په مسأله کې د مسلمان ملت د ارادی ممثل وی نه «دحدودونه» د بهردوستانو»! ولی د روانو خبرو لړی او د قضې بهرنیو جهتونو په مواقفوکی دی ته جدی توجه نه ښکاری او معتولهٔ

هم نه ده چې دغه ورتوقع د هغوی‌نه وکړل شي . ممکن روسان د قضی په رابطه د همدی کمزوری جهت لار پرانیزی ترڅو قضیه او مقاومت په لمړی مرحله کی د نړیوال ملاتړ نه محروم کړی په هغه صورت کی بیا سسکوته د مقاومت د ختمولو یا پر هغه باندی د دامی یو نظام منلوخبره آسانه شکاری چې دا مقاومت د خپل پیام نه لغړ کړی .

د کومه ځایه چې د روسی فوځ موجودیت د قضی فوق العاده بعد تشکیل کړی ممکن روسان د همدی بعد د حل به رابطه د نړی او افغانستان د ګوندیو هیوادونونه په افغانستان کی د موجوده نظام یا د هغه د رجالو داجتماعی حیثیت د خولدی ساتلو به ارتباط د بل هر نوی نظام به جوړښت کی فوق العاده امتیاز وغواړی او د همدی تکی به رابطه ویلی شو چې د خبرو به لړ او پای کی د اسلامی واقعی نظام د نوم د اخستلو چانس صفردی او دا به ځای خبره هم ده ځکه د افغانستان به باب د روسی دښمن په موافقه ممکنه نه ده چې د مقاومت د پیغام حامل نظام راتګ ته ستركی به لاره شو خو د دغسی یو رژیم به مخ د لاری بندیدل اصلاً زموږ مات او روان مقاومت یوی بلی دورانی

د افغانستان د مقاومت پته ولیږیدله او د مقاومت د ختمولو په لارکی خپله جنگی ستراتیژی پــه لسهاؤ ځله بدله را بدله کړه په هرځل کیئ بخپله د روسی فوځ ملاماته شوه او د دی تولو حربی پرمختلو وسائلو او جنگی فعالو تاکتیکونو سره سره بیاهم روسی فوځی ، همغو پولو کی جنگیږی چی د امین فوځ نه پکی د کابل د نجات لاره ورکه وه بلکی په اکثرو سیمو کی ئی اصلا د استقرار او موجودیت امکان هم کمزوری شویدی .

نن پوره اوه کاله کیږی چی سور فوځی لا جنگیږی مقاومت هماغه مقاومت دی. خو د دی سره سره روسی فوځ کی نن د دی جګړی د گټلو په نسبت یقین په شک او شک په یقین بدل شوی روانی جګړی قوماندانان په دی قانع کړل چی د ملت سره د فوځ جنګول بی نتیجی کار دی او په کابل کی د روسی فوځی جنګول بخپله د مقاومت د عواملو سره مرسته کول دی لکه څنګه چی د مسکوسری خورو واکمنانو ته د بلی خوا دا فکر پیدا شوی چی په کابل کی د سره فوځ جنګول به هغوی بخپله په روسیه کی د نفرت او انزجار سره مخامخ کړی زکه هغه فوځیان چی پــه تابوتونو کی روسی ته

مرحلې ته نښامي چې ښائي په دې ازمېښتکې د دې سوال ځواب را برسېره شي چې د بهرنۍ دليا د سياسي او انساني ملاتړ پرته زمونږ ملت يوازې هم څه کولوی شي ؟

دا چې د روانو خبرو او د روسي نظام د موافقو په لړکې د يو اسلامي نظام راوستل د نظره لويدلی کار دی يقيني خبره ده ولی دا چې د دې خبرې دلائل څه دي کيدای شي هغه د روسانو به ضد په دې قوی مقاومت کې ولټوو زکه د يو اسلامي نظام ځور او اثر به حتماًدموجوده مقاومت اوتنظيم به نسبت څو چنده وی. مقاومت چې روسانو د دې شپږو کلونو په لړکې بوره وتاله به تيره دا چې دروس به جنوب کې د اسلامي افکارو دودی او رشد توده څپه روانه هم ده او د بلې خوا د روسانو نور دوستان چې د افغانستان د قضې به رابطهٔ موقف بدل ښکاری هغوی هم ديواسلامئ افغانستان بـه جوړيدوکې د روسانو تـرڅنګ دروی زکه هغوی ته دا به زړه پوری هم نه دی بلکې هغوی کيدای مسکو سره د افغانستان د حالاتو په رابطه د موافقې له مخې د مسکو نه به مرکزی امريکا کې چې هغوی ته دافغانستان حيثيت لری امتيازات واخلی دلته چې اوس د راتللونکی

افغانستان خبره قوی مطرح ده او هغه هم د یو سیاسی نظام پوری تړلی ده نو ویلی شو چی که د مسکو واکمنانو سره د افغانستان د قضی او مقاومت د ستراتیژی د بدلولو خبره د یو نظام د راتګ په حدودو کی جدی مطرح وی په هغه صورتکی به د دغه‌نظام‌خیری په لاندی ډول وی :

۱- کمونستی رژیم
۲- ائتلافی حکومت
۳- آفاقی حکومت

۱- کمونستی رژیم :

څکی مو وویل چی د روسی فوځ د وتلو ټکان ور کونکی بعد روسانوته د دی جرأت ورکوی چی په‌پاکستان، او نوره نړی باندی خپل نوکر کمونستی رژیم ومنی او یا هغه د معمولی تغیر او تراشلو وروسته لکه ځینو غربی هیوادونو چی د دی طرحی ابتکار وراندی کړی د سیاسی حل وروسته افغانستان باندی وتپی او کله چی روسان د افغانستان خاوره پریږدی زمونږ ګاونډی هیواد پاکستان هم د قضی پاتی پړاو دمره جدی ونه وینی او په دی رابطه بنائی په پټو خبرو کی څه مرونه هم خوځل‌شوی

وی ولی دلته دا سوال مطرح کیږی چی په هغه صورت کی چی خبره همداسی وی او زموږ ملت د دغسی یوه حل ورانډی ودریږی د قضی راتلونکی پړاؤ او زموږ د خلکو مستقبل په څه وی؟ دلته رښتیانی خبره داده چی زموږ ملت به د دغسی حل په وړاندی موجوده موقف پرته له کومه تزلزله ساتی او هغه سیاسی او غیر سیاسی ډلی چی په دی رابطـه د خوځـول شویـو سرونـو لار تعقیب او د داسـی حل موافقی ته ځان تسلیم کړی په یقینی توګه په لنډه موده کی د ملت د سخت تنفر سره مخامخ شی ځکه د دغسی ډلو او رجالو حساب د ملت په میزان کی د موجوده کمونستی رژیم د حساب نـه اوچت نـه دی خـوښائی په دی تاریخ جوړونکی دوران کی د داسی لویـدلو رجالـو اوډلو د پاره د «هو» او تسلیم خبره ګرانه اوښائی هغوی خپله د ملت په خاطر هم د دغسی موقف نه ځان لیری وساتی په تیره‌هلته چی رقیبانئی مقاومت ته ادامه ورکړی .

دا چی د موافقی د دواړو جهتونـو د تضمیناتـو او موافقو په رابطه به د افغانستان راتلونکی څنګه د سولی او روغی فضا تـه ننوځی د دی خـبری ځواب ښائی د دغسی

موافقو امضاء کونکو جهتونو سره وی ولی دا ځواب به هلته اورو چی زمونږ سره د دغسی سوال خبره یقینی شی. خو د کومه ځایه چی د کابل په نوکر نظام کی وروستی تحول ښیء سړی پوهیږی چی ښائی نوموړی تحول په دی خاطر وی چی د خبرو او موافقو وروسته په ملت باندی د دغه نظام د تپلو عملیه په آسانه اجراء شی لکه څنګه چی په دی وروستیو میاشتو کی د مقاومت پرضد د روسانو سختی حملی هم همدغه حقیقت تائید وی چی هغوی ښائی دا کار د سیاسی حل وروسته فضا د امنیت او رژیم د مشکلاتو د کمولو په خاطر کوی ولی که څه هم ځان بایللی کمونستان ئی په حساب کی ونه نیسی نن مقاومت اوس یوی بخی مرحلی ته رسیدلی د روسی فوځ په غیاب کی د کمونستی رژیم د بقاء د پاره هر کوښښ د وخت تیره پریکړه ده. اوس د کمونیزم د پاره افغانستان دوزخ گرځیدلی هر کوښښ په دی رابطه د کمونیزم دگناهگارانو د تعذیب د مرحلی داوږوولو معنا ورکوی.

سیء ده چی د روسانو د پاره به د پاکستان څخه د دغسی موافقی امضاء او تائید ډیر قیمت ولری ولی ترکومه

ځایه چه دافغان ملت پوری مسأله مربوط شی دقضی د حل
کلی خپله مجاهدینوسره ده او روسان د دی خبری په معنا ښه
پوهیږی زکه چی ملت دمجاهدینوسره ده خوملت په هیڅ صورت
په افغانستان کی د یو کمونستی رژیم منلوته چمتونه دی او که
هغه پرون داخبره منلی وه نو د روسی فوځ د راتګ ضرورت
څه وه ؟ نن چی روسی فوځ بیرته ستینږی په کوم اعتماد
به کمونستی نظام ادامه پیدا کـوی ؟ زکه چی د روسی
فوځ موجودیت هم د هغه اصلی مشکل حل نشو کړای نـو
د هغه غیاب خو زمونږ ملت ته د دی فرصت ورکوی چی
د هغه سره مخاسخ خپله تصفیه سرتـه ورسـوی که څه هم
د هغه د بقا تضمین د نورو لخوا شو یوی .

ښائی مسکو خپـل تـول زور د دغسی نظـام د بقــاء
په جهت کی په دی خاطـــر واچوی چی په نړیواله سطحه
خپل نوکران مطمئن کـــړی چی مسکو د هغو تـرشا جدی
ولاړ دی ولی لکه څنګه چی خپله روسانو هم اعتراف کړی
د کابل کمونستان د ملت د حمائی نـه څـه چی د کارګری
طبقی د ملاتـړ نه هم بی بـرخی دی د دغسی یو رژیم بیا
رازرغونول اوس د وخت نه پاتی خبره ده. څنګه کیدای شی.

چې محدود ټولنې چې د ټول ملت دښمنۍ ئې هم اخستې وی خپل کور او کلۍ ئې هم به پردو فوځیانو دړی وړی کړیوی په ملت کې یو سیلون بې گناه انسانانئې پـه شهادت رسولی وی بیا دی هـم د محاکمـې پرځـای د تاج و تخت طـلائی خوبونه ووینې .



## ائتلافي حکومت

هغه مسأله چې په راتلونکي افغانستان کې ئې روسان زيات خواشيني کړي هغه د هغوی د نوکرانو مستقبل او سرنوشت دی د پاکستان پخواني وزيرخارجه آغا شاهي ويلي چې د خبرو په جريان کې روسانوتل د دی تشويش ښکاره کړي چې د کمونستانو انجام به څه وي ؟

په هغه صورت کې چې د کمونستي رژيم تحميل فقط د يو ائتلافي رژيم د آسانه منلو د پاره د لاری جوړولو په هدف وی نوښائي روسان د يو ائتلافي رژيم په حدودو کې د غربي دنيا وړاندی کړی طرحه ومنی دا چې ائتلافي رژيم به د هغوی په نظر کې د کومو جهتونو څخه تشکيل وی معلومه خبره ده ولی دا چې په ملت باندی به د دی ائتلافي حکومت منشوراونظام د سهيموانوخونو تعامل او د کمونستي

رژیم د تطبیق شویو پلانونو عاقبت به څه وی دا هغه مطلب دی چی شپائی روسان ئی قصدا د یو غرض د پاره صراحت ته و نه باسی زکه د کمونستی کتلی په قانونیت پیژندل او دهغوی د پاره دقانونی حمائی ضمانت په دی مرحله کی ډیر کار دی ولی دا چی دا کار ممکن او د دغسی یونظام بقاء او سقوط به د چا په گټه وی شپائی روسانو د هغه دپاره د ځان سره دقیقه محاسبه کړی وی او د هغی محاسبی په رڼا کی به خپل پلانونه یو د بل پسی او پخپله موقع کی عملی کوی .

که څه هم د یو ائتلافی رژیم د پاره روس دافغانستان د قضی په ارتباط د ډیرو ذیدخله او غیر ذیدخله خواؤ موافقه هم په لاس کی ولری و په ننی افغانستان کی د دغسی یو رژیم تشکیل او تحکیم اوس د مستحیلاتو په ردیف کی ځای نیولی دی زکه د ملت قناعت یا د دښمن په خوله د هغه دوکه کول هم څه موجه دلائل او نسبة مطمئنه فضاء غواړی . کیدای شی په دی رابطه روسان داسی طرحه وړاندی کړی چی په هغه باندی د مجاهدینو ځینی جهتونه قانع کړی او ځینی جهتونه د طرحی سخت

پلویان ژې د دغسې جهتونو قناعت که څه هم د مقاومت
په طرف کې د یو تازه مشکل ایجاد دی خو د اصل مشکل
په جهت کې کوم جدي حل نه ګڼل کیږي ځکه د یوې
خوا د یونوکر رژیم د رجالوسره ناسته او د هغوپه‌اشتراک
د یو نظام جوړول برسیره پردې چې ناممکن کار دی د ملت
غوصه او انتقام را پاروي په دې خاطر چې د اوکلن جنګ
هدف فقط په حکومت‌کې د ځینو افرادو د برخې اخستلو په
محدودو کې و . دا لویه شخړه چې د تاریخ لویه سانحه‌ئې
را منځته کړه فقط لدې امله روانه وه چې شاغلی ج ..
د صدر اعظمي چوکی ته ورسیږي !؟ په ملت کې د دغسې
تصور را پیدا کیدو سره دغه طرحه بڅپله د ناکامی‌لارنیسي.

دا د یوې خوا د بلې خوا څنګه ممکنه ده چې په دې
لوی افغانستان‌کې چې د جنګ خبره د مره په‌شدت روانه ده
او د جنګ دغه دوه خوا وې نشي کولای په افغانستان‌کې
سره ګډ ژوند وکړي ولې د اقتدار په ګدی چې ډیر کرته
نژدې دوستان هم پرې بڅپلو منځکو سره خوري څنګه
ممکنه ده چې مسلمانان او کمونستان سره ګډ ژوند وکړي
طبیعي ده چې د دغسې ګډ ژوند په صورت کې د اسلام او

مسلمانانو د پاره حیثیت نه پاتی کیږی بلکه د اسلام دنا کامی د پاره همداسی لویه بدنامی کافی ده .

د یو ائتلافی رژیم د تشکل او صورت نه چی تیر شو د نني مقاومت د پیام په رابطی به د نوی حاکمی طبقی موقف څه وی طبعاً اعتذار زکه د دغسی یورژیم نه د مجاهد ملت د پیام تطبیق لیری خبره ده .

که هرڅو څنی کمزوری او ساتی خوږلی جهتونه په دی رابطه خپل مواقف توجیه هم کړی فکر وکړی چی په ائتلافی حکومت کی به د سیاست او رهبری ابتکار دهغوی په لاس کی وی یا دا چی د ملت په قوت او ملاتړ به حالات او شرائط دپیام دپلی کولو او د ملت د حیثیت په ځای کولو خوا برابر کړی ولی هغوی په دی فکر او خیال کی دروسانو پلان او طرحه د یاده باسی چی په ائتلافی رژیم کی به دروسانو نژدی او طویل المدت ستراتیژی څه وی ؟

د ائتلافی رژیم د قیام به صورت کی د وه خبری حتمی ښکاری هغه دا چی یا به د مقاومت به عنوان سهیم جهتونه دجهاد پیام او ملت سره د کړو وعدونه تیریږی او یا به یوی غوڅی او حتمی جګړی ته نوځی البته چی د جګړی په صورت کی

ستنیزی د افغانستان څخه د ځان سره د خپل د مرګ کیسی وړی او پاتی کورنیو تـه ئی د افغانستان د حالاتو په وړاندی مناسب ذهنیت نـه ورکوی او کله چی روغ رمټ ستنیږی نو د ځان سره د روسی فوځیالو د مرګ کیسی او د یوه ملت د ژونـد کیسه وړی هغه چی روسی تـه را ګرځیدلی فوځی په سرئی د ناکامی داغ پری ایښی .

د روسی فـوځ د حضور سـره سره د مقاومت تـداوم د روسی فوځ، ملت او حکومت د پاره بیلی بیـلی خواشینی را پیدا کړی نه حکومت کولی شی چی خپل فوځ ته داسی روحیه ورکړی چی ورته دغه روس شرمونکی جنګ وګټی او نه فوځ کولای شی چی روسی حکومت د دی پیغور نه پوری باسی او نـه فـوځ کولای شی د افغانستـان د جنګ اصلی واقعیت د ملت نـــه پټ کړی زکه د او ـ۷ـ کلو جنګونـو روسان پوه کړل چی اصلا افغانستان کی د روسی فوځیانو د پاره د مرګ داستانو نـه جوړیږی دا خو پـه ځـای پریږده چی روسی ته د ستنیدونکو فوځیانو کیسی د افغانستـان د جنګ ترټولو ملاماتونکی غـذار دی چی د روسی واکمنانو ملائی کیږه کړی ده .

بیا په هیڅ صورت کی ملت د دغسی کمزوری جهت ترڅنګ
ونه دریږی زکه معمولا ملتونه د کمزوری جهت‌سره نهائی
مقاطعه کوی . دا د یوی خوا د بلی خوا د رژیم به سطحه
د هر اختلاف‌به صورت کی بیامسکو د ملامتی خوسکی‌دخپل
مخالف لوری به دائره کی په آسانه غورځولی شی چی ښائی
دغسی شرائط را منځته کول او دغسی نتیجه‌گیری‌ددغسی
حکومت د جوړولونه ادنی هدف وی ، زکه د ائتلافی رژیم
په صورت کی روسان فکر کوی د مهاجرینو مسأنه یو طرفه
کیږی د هغوی نوکران د خپل خطرناک حالت نه بهروځی
که څه هم د ائتلافی رژیم په برخه کی د ملت د نمائندګانو
قناعت لیری خبر ده ولی بیاهم د کمزوری احتمال په‌حساب
کله چی څینی د ائتلافی حکومت ناکامه تشکیل او د هغه
بدعاقبت ته هم جدی توجه ونکړی او د خپلی سړی‌حکمرانی
په قیمت ملت او جهاد مفت په روسانو خرڅ کړی هغوی
د پاتی مخالفینو حساب او تصفیی ته‌څه طرحه لـری ؟ آیا
دغسی یو سست حکومت چی هغه د بی‌اعتماد یوبنیادی‌نفاق
نغښتی وی هغه کولای شی د خپل کمزوری مخالف پـه
وړاندی خپله بقاء او استقرار وساتی پـه داسی حـال کی چی

اوس ملت یوه برخه په عصري وسلو سمبال او په سیاسي لحاظ د مسائلو په باب دقیق فکر کولی شي او په اجتماعي لحاظئ څه نظم او انسجام هم موندلی دی .

داسیء ده چي بهرنی دنیا ښائی راغلی ائتلافی حکومت په رسمیت و پیژنی او د هغو مساعدت هم ترلاسه کړی ولی داخلی استقرار او امنیت چی د یو حکومت د قانونیت د باره سترسند گڼل کیږی او بهرنی دنیاهم خپل اعتماد او روابط د همدی ټکی په ارتباط تنظیموی هغه به د دغسی رژیم او د هغه پیوندی اردو د لاری څنگه برقراریږی ؟ ځکه ممکنه نه ده چي دغسی یو ائتلافی رژیم د اردو په جوړیدو کی موفق شي اوکله هم چي ائتلافی رژیم اردو جوړه کړی معنائی داده چي د پرتو مسائلو حل به د کودتاؤ د لاری سرته رسیږی. که څه هم به اصطلاح د دوستوهیوادو فوځ او ملیشه تریو وخته د هغوی د خپل منځی ټکر مخه ونیسی ولی بهرنی فوځ په افغانستان کی ازمیل شوی، امنیت د بهرنی او بیگانه فوځ د لاری ناممکن دی. د همدی ځایه په افغانستان کی راتلونکی رژیم او د هغه قانونی حیثیت د هیواد د لمړی ضرورت «امنیت» پوری تړلی او داخلی امنیت

هم د يو قوي اوغښتلي اردو پوري . خو د دامي يوې اردو تشکيل او رهبري د ائتلافي رژيم د توان اوسوی نه اوچت کار دی .

نو په دی حساب په افغانستان کی هرمتوسطه جهادی جبهه او د هر ولايت د خلکو سيمئيز مشکلات او اختلافات کولای شي د رژيم بقاء تهديد او د دغسي حالاتو په نسبت موقف او اقدام د رژيم به داخل کی اختلاف او گډوډی را و پاروی .

څنگه چی په افغانستان کی سياسی او اجتماعی شعور د جنگ او مقاومت په دوران کی وده او رشد کړی دا هم ممکنه نه ده چی هيځ جهادی کتله دی د دغسی رژيم منلو ته چمتوشي او يادی رژيم به داخلی تعامل کی خپل وحدت وساتلی شي چی دا کار د دغسي رژيم د تپلو او د هغه د رسمي تعامل په دوران کی د رژيم تولو مخالفينو ته د فرار لارې برانيزی او په دی توگه کيدای شي همدا د امنيت او سولی د پاره راغلی رژيم ! يا د داخل نه د روسانو په گټه يا له بهره د يوې بلی بی نظمی په جهت کی سقوط وکړی ځکه چی روسانو سره د بهرنيو مداخلو قانونی پلمه په لاس کی ده او هغوی کولای شي د قانونی رژيم په عنوان د خپلو کمونستانو نه دفاع وکړی .

# آفاقی حکومت

د آفاق حکومت نه دلته د داسی حکومت تشکیل دی چی د آفاق طرحی د رسمی او غیر رسمی تماسونو په چوکاټ کی په جهاد کی مطرح او غیر مطرح افراد او ډلی د داسی یوقیادت لاندی قانع کړل شی چی هغه په دی ډلو او سیاسی چینلو کی د هیڅ جهت پوری په ښکاره ارتباط ونلری البته چی د دغسی طرحی را وړاندی کول او تطبیق ډیر عوامل لری چی ځینی ئی د مجاهدینو په عنوان مشهورو شویو ډلو او ځینی ئی په کابل کی د نوکر رژیم د ښه او مطمئن مستقبل په لور د لیونیو هڅونه چینه نیسی .

په هغه صورت کی چی مسکو د افغانستان او په سهیلی آسیا کی د خپلی سیاسی ستراتیژی په برخه کی جدی تجدید نظر کوی او په هغه کی څه بنیادی بدلون وغواړی

«چې دا ډیر بعید احتمال هم دی» نو ښائی په افغانستان کې راتلونکی سیاسی حل د موجوده رژیم د بدلیدو سره جوخت وی او ممکن راتلونکی رژیم هم یو آفاق رژیم وی هغه هم په دی خاطر چې د ائتلاق رژیم راوستل ستومانه سیاسی ضرب او تقسیم غواړی ممکن د نظام د راوستلو نه ئې د موافقی جنجال زیات وخت ونیسی او په دی صورت کې روسا و ته د مطرح جهتونو اقناع یا په سیء تعبیر دوکه کول ډیرگران تمامیږی زکه د دښمنی او نفاق د دغی تودی دوری سلبیات او رسوبات د یو ائتلاف رژیم د پاره د بیخ نیولو فرصت نه ورکوی او ممکنه هم نه ده چې د ائتلاف طرحی په قفس کې دی روسان هم «کربتان» اوهم «کفتری» وساتی .

دا چې د آفاق حکومت جوړول به د افغانستان او شاوخوا هیوادونو په هکله روسان د خپلی راتلونکی ستراتیژی د پاره مثبت او مفید وګنی او آیا چې روسان به په ربښتیاهم د دغسی یو تصمیم د پاره روحاً او فکراً چمتو وی دا هغه سوال دی چې په تیرو رژیمونو کې د کمونیزم رشد او په اوسنیو رژیمونو کې د غربی عناصرو بـه نسبت دکمونستانو شکلی وسعت نظری «چې البته د فشار په نتیجه کې ده» او

اروپائی ځینو جهتونو سره د مسکو تماسونه هغه ته ښواب وائی . مسکو پـه دی وختـو کی ښائی دیتـه ترجیح ورکړی چی په افغانستان کی د مسکو د سل په سل پلوی ناکام رژیم په ځای یو نیمه پلـوی کامیاب رژیم را منځته کـړی زکه د روسی پروګرام مطابق هغوی ته د رژیم عنوان د مره مهم نه دی لکه د روسانو د پاره کار . خو د دغسی‌یورژیم لاره همدا د سیاست د بازار ، د زړو جلابانو سره د ګوتو او مترګو په حساب تماسونه جمله مکلمه نده .

داسی یو حکومت چی په ظاهر کی روسی بنه ونلری او یوه روسی حزب ته د ژوند او فعالیت فرصت او زمینـه برابره کړی په هر صورت د روسانو په ګټه تمامیږی‌زکه چی اوسنی رژیم د روسانـو د پاره د حزبی کار خـروار خـروار مستونځی را پیـدا کـړی پـه هغه صورت کی چـی یو رژیم روسانو ته د هغه په څلورمه برخه کار وکړای شی هغه هم د مشکلاتو پرته حتماً به روسان هغه ته لاس ورکـوی او د دی روس ځونکی کړکیچ نه به ځان ژغوری .

دا د یوی خـوا د بلی خـوا پـه بـین المللی ساحه کی د روسانو رقیب استعماری قوتـونـه چی د افغانستان پـه

تنظیمونو او ډلو تهلو کی ښه مطالعه لری او د ځان په گټه داسی مؤثر حزب په نظر کی نه ورځی هغوی هم د یوداسی افغانستان د جوړیدو نه تشویش لری چی هلته د افغانستان د مقدراتو پـه هکله تصمیم او اراده د استعماری جهتونـو د توصیو او فرمایشونونه آزاده وی او ډیر کرته یو ائتلافی حکومت هغه هم د مجاهدو منظمو پـه حـدودو کی د دغسی اوضاع په جهت کی د تحول استعداد لـری د همدی ځایـه ډیر ځله د یو دغسی نظام د پاره دغو استعمارچیانو نظر او مصالح هم لار هواروی او په دی رابطه ښائی روسانـو سره امریکائی دوستان هم لاس یو کړی .

که څه هم په افغانستان کی د امن و امان راوستلو او د یوی نسبة قوی اردو په جوړولو کی آفاتی «د پردو په اختیارکی» حکومت هغه مشکلات ولری چی د احـزابونه جوړ ائتلافی حکومتئی لری ولی دلته د دی نظام یوه مستمره کمزوری «چی په ملت کی ثابته قاعده نلری نوموړی رژیم د تل د پاره په روسانو متکی ساتی او د همدی ځایه کیدای شی د کمزوری اردو جوړولو فرصت ترلاسه کړی خوا دا اردو کیدای شی د ائتلافی رژیم د اردو غوندی پیونـدی او د اختـلاف په

پوله ولاړه اردونه وی او د هغی سره په سختو شرائطو کی د وطن څخه د دفاع طاقت هم نه وی په هرصورت په افغانستان کی د یوی داسی اردو جوړول چی هغه دی خپل وحدت وساتی او بیا دی په جهاد کی مطرح قوتونه د وسلی نه لغړ کړی او د جنګ په دوران کی رشد سوندلی سیاسی اخ وډب ته چوکات جوړ کړی دا هغه کارونه دی چی د آفاق «دلیری تماسونو» رژیم ناکامی ته سترګی په لاره دی ، ځکه د نظام اداره او اردو که هرڅو هم د آزادی غوښتونکو، په ملت کی د سوجوده مطرح قونونو د رجالونه تصفیه شی (چی دا یو ډیر ناشونی کار هم دی) بیاهم ددی احتمال شته چی د آفاق رژیم په اداره او اردو دواړو کی سوجوده او راتلونکی اختلافات انقلابی افکار، نظام او حالات د حاکمی طبقی په سرورو څرخوی او هلته په همدا د آفاق رژیم د واکمنی د پاره په اروپا کی غلی شوی رجال وګوری چی د تقدیر لاسونه کولای چی تښتیدلی‌مجرمان ان داروپانه هم د مجازات صحنی ته راکش کړی البته دا په دی خاطر نه چی د شخصی انتقام تووده تلوسه به د دغسی مستقبل هوس پالی بلکی د آفاق رژیم «د بیګانه ؤ د تائید وړ» نظام

جوړښت او په دی انقلابی او جنګی فضاء کی د کرختو او تجرید شویو رجالو او بدل خپله د دغسی عاقبت مقدمه برابروی .

خو هغه څه چی روسان په دی جهت کی تشویقوی ښائی همدا وی «لکه څنګی سو چی وویل» چی د دغسی نظام په لاره کی هغوی د «سرو کتو» د لاری اطمئنان اخستی شی، په بین المللی سطحه خپل رقیبان هم ترځنګ دروی شی او د هغه په سیوری کی خپل افراطی دوستان او دروس مصالح ښه پاللی شی ، د دی تولونه او خوا په مناسب فرصت یا د ضرورتونو د ایجاب په صورت کی هغه د ځان په ګټه څرخوی او لیری کوی شی .

دلته دوه سواله مطرح کیږی هغه دا چی آیا په افغانستان کی موجوده مجاهد طاقت به داسی نظام ته د اطاعت غاړه کیږدی او په هغه صورت کی چی روسان د دغسی یو نظام نه خپل ضرورتونه پوره کړی د هغه عاقبت به څه وی ؟

داسی نه ده چی څوک فکر وکړی دی سوال ته ځواب د وخت نه مخکی خبره ده بلکی حقیقت همدا دی چی دی سوالونو ته ځواب د همدی وخت خبره ده خو د ځواب له

مخکی دی خبری ته توجه په کار ده چی روسان به حتماً د دی سوالونو په ارتباط راتلونکی اوضاع د پاره ځواب او پروګرام لری خو دا حتمی نه ده چی د روس په محاسبه کی غلطی نه راځی بلکی همدا روانه قضیه د روس د غلطیو زیږنده ده . د آفاقی حکومت د پاره «البته په هغه صورت کی چی روسان همدا لار انتخاب کړی» روسان بنائی مخکی له مخکی پروګرام داسی جوړ کړی چی مجاهد قوتونه پخپل منځکی سره مصروف کړی او د آفاقی حکومت په نسبت د هغوی اختلاف بنائی د هغوی زیات قوت د جنګ او جګړی د اصلی خط نه منحرف کړی ترڅو د راتلونکی حکومت سره د ټکر په صورت کی لمړی خپل بین المللی وجاهت او بیا ملی وجاهت دلاسه ورکړی ولی که څه هم دا احتمال موجود دی خو هغه ډلی او جهتونه چی افغانستان د آفاقی «د دښمن د پټو تماسونو» حکومت بلا ته سپارل یو ملی او اسلامی خیانت ګڼی ، هغوی په ملت کی د قوی ملاتړ ترڅنګ داسی سیاسی بصیرت پری ایښی چی هغه په طبیعی ډول ممکن د دغو طرحو د توفیق او تطبیق په وړاندی جدی مشکلات رامنځته کړی زکه د هجرت سخت شرائط او په دی شرائطو کی

د روسي فوځ د یوکلن تجاوزنه وروسته روسي مستشاران پەدې فکر کې شول چې د افغانستان د رژیم د پاره افغاني اردو جوړه کړي او د دې اردو د جوړېدو په پلمه د وتلو لار پیدا کړي تقریباً دا درې نیم کاله وشول چې رژیم او روسي حاکم مستشار په افغانستان کې د افغاني اردو د جوړلولو نقشې او پروګرامونه یو د بل پسې بدلوي د ١٨ کلن نه نیولې تر ٤٥ کلنو پورې ټول هر چیرې چې ویني د عسکرې د خدمت د پاره جبرا نیسي ان تردې چې کله کله خو د همدې اردو د جوړولو او تقویه کولو په منظور د روسي قواؤ لوې لوې کاروانونه د کابل شاوخوا سیمو ته هجوم وړي ترڅو د عسکرې سن مطابق افراد په محاصره کې ونیسي کله کله دغه هجومونه موفق شویدي ولې پوهیږي چې د دغې اجباري عسکرې ، احتیاط ، او په معاش راضي کړې اجیرو ملیشه وګړیو یو خندونکی حالت نیولی ز که د یوې مخې خلک عسکرې ته په څور نیسي خلک هم اوس چې اداري مرکزونه سجل نلرې د هر ممکن فرصت په موندلو یا د خپلې وسلې سره یا بې وسلې تښتي او د مجاهدینو سره یوځای کیږې دا چې دغه مجبور فوځیان په جنګ کې استخدام

ـ تنظیمونو پــه نسبت د مهاجرینـو نسبي خفګان پـه هیڅ
صورت کې د دې معنا نه ورکوي چې ترټولـو مهمه مسأله
پېرته افغانستان ته ستنېدل وي د ستنیــدو نه مخکې او ان
د ستنېدو په صورت‌کې هم دا مهاجرین د ترخې‌ماضي‌خاطرې
او د جهاد د مستقبل روښانــه آرمانونـه د قضیې د حل په
جهت کې څه ناڅه عمیق فکر ته غورځوي .

مې ده چې د یوې غیرې‌کمونستي څېرې را وړاندې
ون په ملت کې خلک د کمونستي خشنو څېرو په مقایسه
د یوې مغالطې ښکارکړې ولې د کمونستو څــېرو سره بــه
د حاکم نظام مواقف او پالیسي «چې طبیعتاً د طرحې متن
ـ د هغه متضمن وي» بخپله دا ملت ته وښـيء چې د بـل
ور اوسه بیاهم د هغوی راتلونکې تهدیدوي . د همدې ځایه
کنه نه ده چې د آفاق «د دښمن د لاس آله» حکومت پــه
سبت د مجاهدینو د مخالفت غبر داسې په آساني دملت دملاتړ
ه بې برخې پاتې شــي خــاصته چــې روسان د دې طرحې
. جزئیاتو او تفصیلاتو مرحلې تـــه ننوځي هلته په طبیعي
ول مسکو د ملت نه د تجرید شوي رژیم په ځای د نوي
ظام په تشکیل او منشور کې ځانتــه د لاس وهنې توجیهات

وراندی کوی .

دا چی د آفاق حکومت نــه د روسانو د ضرورتونو د پوره کیدو سره په د افغانستان مستقبل څــه وی دا خو هغه سوال دی چی د سرطان او ثور کودتــاوٌ هغه ته عملی ځــواب ویلی دی ځکه آفاق رژیم نشی کولای پــه ملی او بین المللی سطحه د یــوی متوازنی پالیسی پــه خط کی خپل مناسبات داسی عیار کړی چی هم ملت وغولوی اوهم روسان د همدی ځایه د آفاق «ایښول شوی» حکومت او حاکمالو به نسبت د مسکو یوه کوچنی بدګانی هم کولای شی چی حکومت او حاکمان د بل ثــور او سرطان کندی ته سالم وسپاری .

## څو جانبی قضیی

په انقلاب کی ډیری داسی مرحلی یا په قصدی او یا په تصادفی ډول رامنځته شوی اولا رامنځته کیږی چی ځینی ئی د جهاد د پخلی او ځینی ئی د جهاد د بی نظمی اسباب برابر کړی چی مونږ دلته د دغو مراحلو او حالاتو له جملی څخه ځینی چی د سیاسی حل او روانی مانوری په جهت کی مؤثری یا مفیدی واقع شوی څیړو .

**یوه‌لویه اشتباه :**

څه باک لری غم او درد چی په هغه کی د دښمن لاس وی ! همدا ذهنیت دی چی زمونږ ملت‌ته‌ئی دهجرت او جهاد د مشکلاتو په وړاندی فولادی حوصله وربښلی ولی تولو خبره همدا نه ده زکه هغه تکلیف چی سړی ورسره د خپلی بی بصیرتی او یا د خپلو دوستانو له خوانځامخ کیږی هغه کله کله فولادی حوصلی هم زدوئی . په سیاسی او تنظیمی ډگرکی تیل شوی اختلاف د همدغو مصیبتونو له جملی‌څخه دی چی سړی ته د خپل ځان او نافهمه دوستانو نه‌رسیږی پرون، او نن هم زمونږ ملت د دغی تفرق‌له مخی‌لشی‌کولای د جهاد په سیاسی اړخ کی د یو قوی دریځ نه سر را اوچت کړی زکه چی د یو سر پرځای څومره او د یوی خولی پرځای سل خولی لرو .

که څه هم د دغی نیگړتیا د لیری کولو په خاطر گن‌کوښښونه په کار ولویدل ولی تول تقریباً بی نتیجی پاتی شول ترڅو چی وار د اوگونی اتحاد دعوت او بیا د اتحاد تشکیل ته ورسید ولی هغه خپلی فوق العادگی د ښو وغورځوه هلته چی د جبونو او د پردو پوری تړلی عناصر تری وتښتیدل پاتی د بیعت په پړی تړلی جهتونه هم یو د بل

په ختمولو مصروف شول خو متأسفانه چې د جفـا او بیعت خواوی پرځای پاتې شوی بیعت او اتحـاد جوخت د جفا پـه هماغـه معروف اتق کې پریوتل .

منم چې د دغه اتحاد پرضد د جفاء تشکیل شوی جبهه ډیره پراخه او ډیره پخوانی وه څوک‌تری د شوری د تشکیل، څوک تـری د بیرغ پـه ورځ څـوک د بیعت وروستـه وتښتل . د دغه اتحاد تاریخ د دی شاهـد دی چې ځینو پکی هم مشکلات پیدا کول او هم‌ئې د دی مشکلاتو په استناد د هغه نه شکایت کاوه . ځینوئې په شتمنی خپل ځپلوان پالل، ځینو د اتحاد د دعوت په نامه یکی منصبونه لټول او پیدائی هم نړ‌ ـ ـه اتحاد کی د مشکلاتو پرتـه څـه پاتی نشول خو د دی ـونو مشکلاتـو سره سره په دی اتحاد کی قسمونه بیعتونه شومی‌وه تر ډیره حده موفق وه او په هغه کی صالح او مسلمان شخصیتونـه موجـود و او په سیاسی او فکری لحاظ هغه د هر دښمن پـه سترګـو کی ازغی او د هر توطئې په وړاندی غاښ ماتونکی غذاروه ولی بالاخره داخلی جفا کاری جبهی د هغه پـه مظلوم حـالت تـرحم ونکـړ او بهرنی توطئه‌کونکی جبهی ته فرصت په لاس ورغی‌اوهغه‌ئې

په بشپړه ناځوانی د تیرو مظلومو اتحادونـو پسی د قضاوت موزیم‌ته ولیږه ترڅو د افغانستان قضیه او ملت په بین‌المللی او محلی سطحه د قـوی حامی او ممثل نـه محروم ، بهـرنی جهتونه زمونږ د وطن او قضیـی د تقدیر په هکله په تصمیم کی مخالف غږوانه اوری .

سیء ده چی اتحاد ناکام اتحاد وه ولی دا ناکامی پری تحمیل وه ، کیدای شول چی د جهاد او مبارزی سره ناآشنا او بی پرواوگړو د توبی فرصت پیدا کړی وه اُن تردی چی نن په دغه شرائطو کی چی زمونږ قضیه یوه متحد غږ ، مصمم جهت ته ضرورت لری هغه مریض اتحاد هم قضیه د سیاسی افریشن نه ژغورلی شوه ولی د بده مرغه د اتحاد په رنگیدو اوس د سیاسی حل چاره د مقاومت پـه اختلاف ځپلی مری اینبودل شـوی خو دغـه چـاره د اسماعیلی ملت مری نشـی پرپکـولی .

**یو بختور احتمال :**

دا څه نوی خبره نه ده ډیر کرته د دښمن‌دشرپروگرام د مقابل لوری د نجات وسیله گرځی . څوک به دا په خیال کی هم نه گرځوی چی د سیاسی حل په عنوان د روسانو په

زره کی پرته توطئه به د مقاومت د ځېلو په ځای مقاومت نورهم تقویه او د ملت د غولولو په ځای به ملت ته دراتلونکی خطر په نسبت زیاته بیداری ورکړی .

ډیر کرته انسان فکر کوی چی خلاص شرائط به دیو نهضت د پرمختګ او قوت زمینه برابره کړی ولی داسی ډیر شوی چی خلاصو شرائطو د نهضت د وګړو روابط سست کړی او په هغه کی ئی د څو جهتی د پاره ئی لار پرانیستی ده مخکنی اشتباه او د هغی د ادامی لوی سبب هم همدا خلاص شرائط «بی محنته تعهد» وه هلته چی وګړی او ډلی د خطر د جدی مقابلی د پاره ځان کافی ګڼی او د مقابلی ترڅنګ د دمی فرصت هم په لاس کی لری ولی اوس چی بی محنته دعوت «خلاصو شرائطو» د نهضت اعتماد یو غرور ته نژدی کړی او د مسؤلو متعهدو مقام او ځای غیر مسؤلو افرادو ته هم رسیدلی کیدای شی د تقدیر لاس دلته هم د بدلون تکل د بندو «محنتی» شرائطو په راوستلو پیل کړی ترڅو مغرور وګړی د اعتماد مقام ته راکښته او غیر مسؤل وګړی د تعهد د مراکزونه خپل غیر مسؤلانه پوړی ته را وپرځوی .

دغه احتمال او په ساتورو ولاړ سیاسی حل چې غواړی اسلامی مقاومت څخه له تباه او یا په راتلونکی افغانستان کی هغه د ملت د سیاسی او فکری قیادت نه تجرید کړی کیدای شی اسلامی نهضت د محنت او تکلیفونو نوی پړاو ته ولیږدوی او هغه اشتباه چې په دی اوږده مقابله کی ئی د مسکو قوت او مقام سولولی وه هغه د همدی سولیئز حل د توطئی په پیل دا ځل او په دی ترتیب «ولی په حساس تاریخ کی» د نهضت د قیادت خبره او موقف د لاری او هدف په خوا یو اوغښتلی کړی .

البته دا مطلب د خیالی ارمانونو د ضرب وهلو معنا نلری دا هغه حقیقت دی چې په تاریخ کی ډیر تکرار شویدی . که څه هم ښائی په ابتداء کی د هغه واحد موقف او د واحدی پالیسی آثارونه لیدل شی ولی هغه ذهنیت چې دی ملت د جهاد په دوران کی اخیستی دی هغه کولای شی په ډیری خطری حالاتو کی هم ملت په یوه معقول او مناسب موقف کی راونغاړی .

# د توطئې بل مخ

که څه هم په سطحي نظر کې ډېره بعیده ښکاري چې په دغسې حالاتو کې به د مسکو او کابل د حاکمانو په سرکې د مجاهدینو د دښمنۍ او د هغوی په ضد د توطئې پرته د بل پلان او پروګرام فکر وګرځي . د همدې ځایه او په طبیعي ډول مونږ د سیاسي روان حل په ارتباط د توطئې هغه مخ وینو چې د روسانو سره زمونږ د تودې دښمنۍ په هنداره کې ښکاري په داسې حال کې چې موجوده شواهد ، تاریخي سوابق زمونږ دغه بدګماني یو په ځای واقعیت تسلیموی او د نړۍ په روان اخ وډب کې د دښمن په باب د دغسې تصور انګیرنه بخپلوار د سیاسي ویښتیا سره تړلې کار دی خو په همدې ریښتینه انګیرنه کې مونږ د توطئې بل مخ ته چې د ثور د کودتا او بیا د روسي بې شرمانه هجوم وروسته د روسي فوځ د ناکامۍ په دوران کې د مسکو او

کابل د نوکر رژیم د بامیرانو د مخفی زره بداوی نه رنګه اخلی هیڅ متوجه نه یو .

هیڅ معقوله نه ده چی د مسکو مغرور حاکمانو به پرون د کابل د خوړلو په تکل کی د کابل په شاوخوا کی د روسی فوځ او سیاست ناکامی ډرامی په فام کی لیدلی وی او پرونی افغانستان دی هغوی د روسی د ننی رسوا او شرمیدلی ماتی په قیمت واخلی ولی حقیقی خبره هم داده چی د روسانو ته دغه لوبه په کابل کی د هغوی د نوکر رژیم د غلطو راپورونو او افکارو نه راپیښه شوله او د همدی غلطی د انتقام په لړکی ترکی او امین یو د بل سروخوړ ولی د دی غلطو راپورنو لړی لا همداسی روانه ده چی ورسره موازی هم د روسی فوځ او سیاست ناکامه هلی ځلی هم بی نتیجی پاتی دی .

داسی ډیر دلائل شته چی د مسکو په زړه پاخه حاکمان د کابل خینو نوکرو بامیرانو ته د غوصی غابښونه چچی ولی روسان پوهیږی چی اوس د دغسی غوصی د سړولو فرصت نه دی د همدی ځایه چی د روسی فوځ د حضور نه وروسته د روسانو زړه بداوی اخرینی درجی ته رسیدلی، وینو

چی د کابل په اصطلاح حاکمانو څخه کلی اختیار روسی مشاورینو ته سپارل شوی او په وړه او لویه مسأله کی د روسی مشاورینو د پریکړی او مرضی پرته د کابل د مزدور رژیم رجال د خپل د دفتر دروازو پرانستلو اختیار هم نلری دا زکه چی د مسکو حاکمه طبقه د کابل د حالاتو په هکله په دنیا کی پوره سپکه شوی او نور هغوی د کابل په مزدور حزب او د هغوی په معلوماتو هیڅ باور نه ساتی او په دی خاطر چی د کابل د اوضاع په ارتباط هغوی تل په جریان کی وی کار او اقدام ټول د روسی مشاورینو په لاس کی دی تردی چی ببرک نشی کولای د روسی مشاورینو د اجازی پرته د کابل رادیو نه وغږیږی نن په افغانستان کی د کمونیست ګوند نه نیولی په دولتی ټولو اورګانو کی ان د شئون اسلامی د مبتذلی اداری پوری ټول کار روسی مستشارانو پوری اړه لری .

په فوځی عملیاتو کی د نوکر رژیم فوځ خپل اهمیت بایللی دی هغوی د ایله جاریانو په توګه استخدامیږی او د تلفاتو په ځای کی هغوی جبراً وړاندی کولای شی . د هغوی معلومات روسانو ته بی اعتباره شوی د همدی

شي هغوی بخپله د رژیم د پاره د یو جنجال را منځته کړیدی زکه رژیم د دی په ځای چی هغوی پـه جنګ او جګړه کی استخدام کړی د هغوی ساتنه او مراقبت بخپله د رژیم د پاره یو لوی مسؤلیت او پروګرام ګرځیدلی دی .

د جنګ په دوران کی نه روسان او نـه د کابل مجبور ځوځیان یو په بل اعتماد لری هیڅ یوهم د لورو په معلوماتو باور نه ساتی. کله کله خو د دوی په منځکی ناځاپی او اوږدی جګړی هم کیږی .

داسی هم شوی چی د یوی سیمی ټـول سپین ږیری او مشران رژیم بندیان کـړی او بیائی ورسـره تفاهم کړی او خلکو تهٔ ویلی چی باید وسله واخلی او د دوی په تعبیر د خاوری او انقلاب نه دفاع وکړی کله چی خلکو د مزدور رژیم نه وسله غوښتی نو بیا رژیم اعتماد نه دی کړی ممانعت ئی کړی د کلی مشرانو ورتـه ویلی پـه دی صورت کی زموږ مسؤلیت څه دی چی نه وسله را کوی چی ستاسی نه دفاع وکړو او نه تاسی «رژیم» زمونږ نه دفاع کولی شي او ډیـر ګرتـــه داسی هم شوی چی دولت وسله ورکـړی او ټول مسلح د مجاهدینو ترځنګ دریدلی دی .

ځایه تول جنګی پلانونه د هغوی نه پټ اجراء کیږی .

د ځلورو کلونو د کړنکار او تجربې په لړکی د روسی فوځ مناسبات د کابل د مزدور نظام او حرب سره حساس پړاو ته رسیدلی دی د یوی خوا د کمونیستانو داخلی اختلافونو او د بلی خوا د غیرګوندی فوځیانو او صاحب منصبانو عقدی د دی باعث ګرځی چی روسان د جنګ په دوران کی زیات تلفات ورکړی او د هغوی نظامی عملیات کله مخکی له وخته افشاء او کله هم په غیر مترقبه ډول ناکام او کله خو د روسی او نوکر فوځ د زړه بداوی له کبله دواړه د مجاهدینو له خوا سخت غذارونه په خوله خوری چی دا تول بچپلوار د هغوی خپل منځی ډاډ له منځه وړی .

لکه څنګه چی د روسی فوځ د دغی ناکامی تجربی او تعامل بدی خاطری مسکو ته د روسی لوړ مرتبه نظامیانو د راپورونو په مقدمه کی ریلی کیږی په تیره هلته چی دغه راپورونه د هغو روسی صاحب منصبانو له خوا ولیکل شی چی روحاً په افغانستان کی د جګړی د ادامی نه کرکه لری.

د دی پرځنګ کی د افغانستان په ارتباط په بین‌المللی

محافلو کی د روسی دپلوماتانو دپلوماتیکی مشکلات او خـړ ستړگی د مسکوځلی او بین‌المللی سیاسی ستراتیژی او مواقف بی خونـده کړی په طبیعی ډول په بهرنی نړی کی د روسانو هغه ځوانی نیمه کامیابه دپلوماسی غټه صدمه لیدلی د روسی سیاسی او اطلاعاتی شبکی د روسانو د سیاسی کمزوری موقعیت او په بین المللی مطبوعاتـو کی د هغوی د لویدلی او محکوم موقف هره ورځ خبریږی ؟

په دی اساس د افغانستان څخه د فوځی راپورونو او د بهرنـه د سیاسی او اطلاعـاتی راپورونو په لړکی د مسکو سراخیستی واکمنان حتماً دی تـه رسیدلی چی د افغانستـان د قضیـی پـه عنوان روس ته وربیښه دغه لویـه سپکه هیڅ کله او په هیڅ صورت د دغسی په ملت کی رسوا او بی حمائی کمونیستی گوند او رژیم نه د حمائی په قیمت نه ارزی داسی یو رژیم چی پـه مستمره توگه د روسی فوځ موجودیت تـه ضرورت لـری معنائی داده چی په افغانستـان کی د روسی فوځ پرته هیڅ رژیم نشته . د همدی ځایه په افغانستان کی د روسی فوځ پاتی کیدل روسانو ته په ډیرقیمت تمامیږی په کمزوری احتمال کیدای شی د همـدی سیاسی حل په دوران

کی مسکو وغواړی د دغسی سپک‌ګوند او نظام د التخار نه خپلی وړی سپکی کړی ترڅو په طویل المدت کی د افغانستان په باب د یوی بلی طرحی د لاری‌تصمیم ونیسی. داسی یوکار هیڅ د امکان نه لیری نه دی دا چی مسکو ته د کابل رژیم د ځان پایللو حکامو سفرونه بی وخته او ناڅاپه لیدل کیږی ښائی د روسانو په باب د هغوی د دغسی بدګمانی نه را پیدا شوی وی .

د دی ترڅنګ چی روسانو ښائي د کابل د کمونیست ګوند په پاللوکی زیاته مبالغه‌کړی وی او ممکن اوس هغوی د خپلی مبالغی په تلافی کی یو داسی رژیم راوستلو ته زړه ښه‌کړی چی روسان د دی ناولی پالنی د شر نه وژغوری ؛ دا هم ممکنه ده چی بل طرف یعنی په اصطلاح د خلق‌ګوند هغه هوائی او په هنګامه ولاړه مینه چی د مسکو د رهبری په هکله ئی درلودله د لاسه ورکړی وی او د دغسی یوی نیکی فاجعی شواهد هم ډیرلیدل کیږی .

که څه هم د خوقند د خود مختار حکومت بغاوت او په چکوسلواکیا کی د دیچک د اندیوالانو د لثیزتصمیم په مصر او صومال کی د سادات او زیاد بری په وخت سرغړونی

دا تول د دی حقیقت شاهد دی چی د مسکو د واکمنانو سره یارانه آسانه وی خو پاللړئ عاقبت که د مقابل لوری سرونه خوری د انحراف او بیلتون چانسړئ حتمی دی .

نن افغانستان کی که څه هم روسی فوځ د کمونیستانو د ژوند یوباوری تضمین دی خو دغه مهاجم فوځ د هغوی د پاره حیثیت او د ملت سره د بیا پیوند نیولو فرصت له منځه وړی .

سیء ده چی د افغانستان کمونیستانو د نړی کمونیستان وشرمول هلته چی د ملت سره د تفاهم پرځای روسی فوځ ته ننواتی ویوړه ولی دا هم باید ومنوچی د روسی فوځ د ظالمانه حضور او د هغوی د حاکمانه تعامل وروسته بنائی ډیر کمونیستان په دی فکرکی شوی وی چی د هغوی پرځای خپلو مخالفینو ته پناویسی ولی هغوی فکرکوی چی د هغوی مخالفین یوازی همدا کومک د هغوی سره کولای شی چی د دغسی لویدلی او ذلیل ژوند بارئی د اوږو پورته کړی د همدی ځایه هغوی د روسانو سره په ژوند کی د خپل سپک عمل مناسبه جزاء وینی .

هغه سپیری ورځی چی د کابل د نوکر حزب په

شرمیدلی قیادت او لویدلی قاعده تیریږی د هغو د زغم حوصله یوازی همدا پست او بیهمته خلک کولای شی زکه‌ننی کمونیستان د مشاورینو په خدمت کی ولاړ حاضر پاشان دی د جنگ او سولی پریکړه دواړه روسانو سره ده د هیڅ داسی اقدام او پریکړی واک نلری چی ملت ته د هغی په لړکی هغوی خپل موجودیت وښیی .

د یو عادی روسی فوځی د پاره په ژوند او مرگ کی ډیرڅه کولای شی چی د هغه په سلمه هم د یو نوکر افغانی ضابط د پاره نشی کیدای ، عادی روسی فوځی چی ومری د هغه نعش په تابوت کی د خاصو مراسمو په لړکی نقلیږی په داسی حال چی د نوکر فوځ فوځیان او صاحب منصبان په میاشتومیاشتو په زمکه پراته وی څوک د هغوی د مړو د نقلولویه برخه کی هم اقدام نشی کولای .

داسی ډیر شوی چی روسی فوځی په جنگ مبادله شوی په داسی حال کی چی ډیرلوړ رتبه «د هغوی په گمان» نوکر فوځی د اسارت په وخت کی فقط د مرگ انتظارباسی.

د یوی خوا دغه نوکران په دی خاطر چی د پردو د حمائی لاندی ژوندکوی د هیڅ ډول ابتکار اوتصمیم اراده

ورسره نشته او په هغه مواردو کې چې هغوی د کوم کار او پروګرام په ارتباط خپل عرض وړاندې کړی د روسي مشاورینو د استهزا مورد ګرځی .

داسې ډیرشوی چې نوکر رژیم ان د وزیرانو په سویه په ملي مسائلو کې د سیمې د خلکو سره پریکړې ته رسیدلي ولې کله چې روسي‌مشاور په جریان‌کې غورځیدلی په یوأ کت ئې د مزدور وزیر د څو او نیو پروګرام او پریکړې په زمکه وهلی او د نوکر رژیم رسوا وزیر هم د سیمې د خلکو د بیا لیدلونه معذرت غوښتی‌دی. دا کار په ننګرهار، لغمان، کابل، پروان ، قندهار، پکتیا او په ډیرونورو ولایاتوکې شوی دی.

دری کاله مخکې د پروان ولایت د رباط قوماندان «پاچا» د روسانو په جال کې اسیر ولوید هغه د خپل اسارت او آزادیدوکسیه داسې کوله :

کله چې زه د خپل صوف نه وایستل شوم د بګرام د میدان په یو خاص ځای کې مې تحقیق پیل شو زما ټول تحقیق د روسانو له خوا کیده ځکه چې ما د تحقیق او تعذیب په دوران کې زیات مقاومت ښکاره کړیوه تاجکی صاحب منصب راته د خلاصیدو په هدف داسې وویل :

«حتماً یو روسی فوځی اسیر پیدا کړه ترڅو مونږ تل
د مبادلی د لاری آزاد کړو» .

په دغه دوران کی چی زما ارتباطی دوستانو د یوه
روس اسیر صاحب منصب وعده ورکړه او زه د مبادلی په
انتظار کی وم یوه ورځ د پروان ولایت د حزب منشی او
د ولایت معاون زما کوټی ته را ننوتل او په لاس کی خو
پاڼی وی د هغوی د راتګ پسی جوخت روسی صاحبمنصب
هم کوټی ته را داخل شو چی ته ډیره جدی غوصی نیولی و
هغه د حزب د منشی نه یوښتنه وکړه چه د څه د پاره راغلی
یاست ؟ هغوی وویل د تحقیق د پاره ، هغه وه چی بی له زنګ
خپله را پاڅید او د پروان ولایت دغه مقتدر حزبی نوکران
په نیلوتیلو وایستل او په داسی حال کی چی یوه دا ی
ملکوګلاس په خوله کی وه او بهٔی سکلی ګلاس د لاسه ولوید
هغو دواړو ته روسی صاحب منصب وویل :

«دا کار تاسی پوری مربوط نه دی» .

د یوی منبع له خولی وائی یوه ورځ په رژیم کی مقتد

صاحب منصب چی د ملاقهار پیلوټ نژدی ملگری وه هغه ته په دی خاطر وزغی ترڅو ملاقهار پیلوټ کار کولو ته تشویق کړی ولی کله چی ملاقهار هغه ته وویل چی د روسانو په راتگ ځنگه ممکنه ده یو افغان بیا هم په نظام کی کار وکړی آخر د دی ملت نه خو شرم په کار دی . کله چی راغلی دولتی بی شخصیته لوړ رتبه صاحب منصب بی ځوابه شو او د هر ډول استدلال استعدادئی د لاسه ورکړ د ځپل حماقت معذرتئی داسی وړاندی کړ :

«ان د هغه لینن دی په پلار دی لعنت شی مونږ هیڅکله داسی نه وه پتیله» .

په چپرهار کی رژیم تقریباً د سیمی‌تول مشران را تول کړل ترڅو د دولت په حمایه‌کی وسله واخلی. د سیمی‌مشرانو د شرقی «زون» رئیس بشرمل ته وویل : چی هغوی نشی کولای د وسلی پرته د اشرارو مقابله وکړی که رژیم هغوی ته پوره وسله ورکړی شی هغوی طبعاً دفاع تـه حاضر دی ! کله چی د شرق د زون آمر د مشرانو سره موافقه وکړه او د دغی پریکړی په بابئی روسی مشاورخبر کړ مشاور وویل

دا بې‌خې بې‌ځایه ده ! دا خلک وسله اخلي او د اشرارو په گټه درېږي . روسي مشاور زیاته کړه چې مونږ د جلال کوټ د میدان هوائی څو کلیومتری اصلاً غوارو تصفیه کړو .

کله چې د سیمې مشرانو د بشرمل ته وکتل نو هغه خوارکی د خجالت څخه ځېرې پرته نورڅه نه وه پاتی .

دغسې په ټول افغانستان کی روان حالت ټول د نوکر حزب د افرادو د پاره د زغملو ورنه دی د همدی ځایه بنائی په ننیو شرائطو کی روسان او د خلق‌گوند زیات وگړی په دی هڅه کی وی چې د مجاهدینو د خطر نه په ځان ژغورلو داسې زمینه برابره شي چې هغوی یو د بل نه خپل انتقام واخلي لکه څنگه چې دا هم د امکان نه لیری نه ده چې د روانو خبرو په لړکی روسی او خلقی دواړه جهتونه په دی لټه کی وی چې د مقابل لوری د حمائی او ملاتړ د عار نه ځان خلاص کړی اوس او یا په راتلونکی کی یو د دوو احتمالونو یقیني ښکاری چې یا به روسان په ببرک باندې د داؤد د ترکی .... تکراروی البته په دی تفاوت چې دا ځل په هغه د خپلو سرسختو اندیولانو په لاس نه

بلکی د یو داسی رژیم په لاس له منځه ورې چې هغه د لاندې طبقې کمونستانو دودې او رشد د پاره زمینه برابره کړی او یا به د روسی فوځ په وتلو « چې نسبة بعیده ښکاری» هغه کمونیستان چې روسی فوځ د اقتدارنه غورځولی د روس او پرچم پرضد داسی لوبه په کار وری چې د خوقند خود مختار رژیم امین نمیری سادات او نورو په کار وری ولی دا کار ښائی وخت ونیسی او ښائی مناسب فرصت هم پیدا نکړی .



بنائی په افغان او لوکره اردوکی داسی مجبوره فوځیان هم وی چی څلورځله د فوځ نه تښتیدلی وی ولی رژیم اوفوځ نه پوهیږی چی هغه دکوم ولایت او دکومی ولسوالی دی خوځله فوځ ته راغلی او څوځله تښتیدلی ؟

د احتیاط او عسکری په خاطر روانی تلاشیگانی کله‌کله مسخره حالت ونیسی د ښار په یوه‌کوځه کی څوځله دتذکری او ترخیص پوښتنه‌کیږی کله داسی هم‌کیږی چی د یوی سیمی فوځی په دی خاطر چی د تفتیش حالت کی ورسره تذکره او کارت نه وی د تلاشی په نتیجه کی نیول شوی ، حیره شوی او د اوږدی مودی وروسته‌ئی دا ثابته‌کړی چی هغه په بل نظامی واحدکی وظیفه اجرا کوی .

خو په دی توله موده او په دی مسخره تفشیشونو روسی فوځ ونشوای‌کولای چی افغانی اردو جوړه او یا د ملت سره د رژیم پیوند پیدا کړی ، که څه هم په دی دوارو جبهتونو کی گن پروگرامونه عملی شول او زیاتی پیسی‌ئی مصرف‌کړی .

داسی روسی فوځ په هماغه بدحالت کی پاتی دی نشی‌کولای مطمئن حالات را پیدا کوی زکه د دولت د ۸۰

بسم الله الرحمن الرحیم

# روانی خبری راتلونکی افغانستان

## د ثور بلا

هغه ورځ هم تیره شوه چی کودتائی کمونستانو قدرت ته د رسیدو سره سم د بل هیچا موجودیت په افغانستان کی نه مانـه بلکی عملائی د خپلو مخالفینو پـه وژلـو اورتلـو پیل وکړ .

هلته یوی ډیری کوچنی اشتباه هم دکودتا اقتـدار- چیانوته د خپلو مخالفینو د مرګ ، زندی او زندان پلمه په لاس ورکوله او په پوره بی رحمی‌ئی د انقلاب په عنوان دکوچنی اشتباه پـه خاطر د یوی او یا څوکورنیو ژونـد د مصیبتونو بلاته سپاره .

د انقلاب په لمړی کال کی چی هوسی کمونستان نوی

# انتخابات او موقت حکومت

ځکه له وخته ده چې سړی د روسی فوځ د وتلو او د مهاجرینو د ستنیدو په صورت کې د راتلونکی اوضاع او نظام د استقرار په هکله د مشخصو افکارو پربناء څه ولیکی ولی د کومه ځایه چې زیږی بې طرفه عناصر او ډلی ئی هسی د ځانه «بی لدی چې په روانو خبروکی څوک برخه‌ور کړی اویائی رائی او نظر ته قیمت ورکړی» اټکلوی فکر کوی چې په افغانستان کی د نظامونو استقرار، د جنګ توقف، د سولی او امنیت تامین دا ټول د دی حقیقت پوری تړلی خبره ده چې په افغانستان کی یو بی طرفه موقت حکومت چې د یوی بین‌المللی اداری یا ګاونډی هیوادو نظارت هم ورسره سهیم وی رامنځته شی او د همدی موقت حکومت په دوران کی د روسی فوځ ته د وتلو او مهاجرینو د ستنیدو

فرصت او د راتلونکی قانونی نظام د انتخاب فضاء برابره کړی ولی برسیره پردی چی دغه طرحه به د گوربه چوف د موافقی د حلاجی نه په اسانی تیره هم نشی هغه په طبیعی ډول زیات مشکلات لری چی د مشکلاتو په سر کی ددغسی حکومت د ترکیب عناصردی. بیا په دغه جنگ ځپلی عصبانی فضا کی دا طرحه په هوا کی د قصر د نوجوړولو ته ورته ده . ځکه چی په موقت حکومت کی د متضادو جهتونو رامنځته کول د روانی شخړی لمبو ته د پوکی حیثیت لری او د یو طرفه موقت حکومت هم‌نشی کولای د مخالف لوری ډاډ او مطلوب امنیت برقرار کړی .

په دغسی شرائطو کی که څه هم معقول او مطلوب کار بل څه وی ممکنه نه ده چی د یوی انقلابی با صلاحیته حکومت پرته په هیواد کی نظام مستقر او د خلکو امن و امان خوندی پاتی شی د انتخاباتو مسأله په دی رابطه دمره بس ده چی په دی اضطراری او دښمنیو نه ډکو شرائطو به هیڅ یو نظام هم د انتخاباتو د پاره زمینه جوړه نشی کړای په داسی حال کی چی همدا روان تنظیمونه خپله زیات ئی په انتخاب او آزادی رایی په اصل ولاړ نه

دی د همدی ځایه د هغو نه د یو انتخابی حکومت د پاره د زمینی جوړولو خبره په وړاندی ترکیب یوه درنه آرزو ده .

د کابل د رژیم وروستی تحولات او د مسکو له خوا هغوی ته د خپلو مخالفینو سره دتفاهم توصیه چی په وروستیو وختوکی واورول شوه خپله دا ښیء چی مسکو او کابل د یو موقت حکومت د پاره مقدمات برابر وی ولی ښائی هغه جهتونه چی په دی موقت ترکیب‌کی د برخی‌اخستلواستعداد لری هغه د کابل رژیم پرخوښه ځای په ځای او استخدام شی دا چی آیا په پیښور کی به هم داسی څوک وی چی په دغسی رژیم کی برخه واخلی دا د وخت خبره ده زکه ښائی داسی عناصر هم موجود وی چی د مجاهدینو دحکومت په صورت‌کی د هغوی هوسونه او ارمانونه نشی پوره‌کیدای او یا ډیر کرته د مجازات وړو گرځی د دغسی وگړو برخه اخستل څه موانع نلری منتهی د هغوی شراکت د کوم مشکل د حل په برخه کی مؤثر نشی ثابتدای .

# د سوابقو له مخې

د افغانستان سره د روسانو پنځوس کلنې دوستي او په دې جهت کې د راغلو رژيمونو سره د روس دوستانه اړيکو چې پــه افغانستان کې کوم استعماري غوبل را منځته کړ دا د روسانو د پيژندلو په برخه کې ترټولو مؤثر سند دی .

ولې د لا پيژندلو د پاره ئې دا مناسبه ښکاري چې د دې قوم سوابقو او تاريخ ته هم لنډه کتنه وشي .

د پخوانه روسان يو وحشي بې‌دينه ، بې نظامه بې مدنيته قوم پيژنــدل شوی دی ولې دا ولادمير وه چې پــه ۹۸۰ کې ئې د روسي قــوم د پاره دين او تهذيب انتخاب کړ هلتــه چې اسلامي دعوت کونکې د بلغاريا نه د روس خاوری تــه ننوتــل ولی د وخت حــاکم د خپلــو مشاورينو په توصيــه ګاونــډی هيوادو ته هيئتونه وليږل ترڅو د هوسا او پرمختللی قوم لټه وکړی او د هغوی دين د خپل قوم د پاره انتخاب

کړی هغه وه چې د بیزنتین ننی استانبول نه راستون شوی هیئت د هغه ځای د مدنیت او پرمختګ کیسی د ځان سره راوړی او په نتیجه کی روسی واکمنانو د خپل قوم د پاره عیسویت د یو دین په توګه انتخاب کړ خو د دی نوی دین سره سره بیا هم دغه وحشي قوم د مدنیت او نظام خاوند نشو هلته چې د عیسویت ترټولو بده څپه په دی ملک کی را څرګنده شوه خو د اوږدی زمانی اوګټو حوادثو وروسته تزاری حاکم «پتر» وکولای شول . دا قوم په یوه نظام کی سره غونډ او هغوی ته یو جهت ورکړی که څه هم د پتر پروګرام او اصلاحاتو روسی قوم ته څه ناڅه قوی موقعیت ورکړ او هغه‌ئی د دنیا د لویو استعماری دولتونو په کتارکی ودراوه ، ولی د قوم وحشت نه دا چې ادامه پیدا کړه بلکی د قوم په سرکی دا ځل یو وحشی نظام ځای ونیوه او د دنیا بلا ملکونه ئی په ځور او ظلم د روسی قلمرو په دائره کی ځای په ځای کړل خو د پیړیو په تیریدو د نظام وحشت او تشدد بخپله د نظام او رژیم ملاتړ ماته کړه هلته چې دا روسی تاریخ د ډیره درجه عقده‌ من شخصیت دوتمار ولادیمیر لینن ته نوبت ورسید او د خپل

قوم دین ، تهذیب، نظام، مال او دارائی ئی تول د یو کلهٔ او وحشی حزب لاس ته وسپارل او نن د روسی هماغه وحشت څو برابره شوی او د روسی قلمرو بهرهم د نیمی دنیا آرامی او هوسائی ئی په خطره کی غورځولی ده بلکی هماغه تزاری روسی نن په کمونیستی قیافه کی د پتر د خوب د تعبیر پسی دنیا ته اور ورته کوی .

روسیه د ولادمیر «۹۸۰» په دوران کی د یوی محدودی سیمی نوم وه چی په مسکو، کیف «منک» کی خلاصه کیسده او تول مساحت ئی د یو نیم ملیون کیلومتر مربع نه زیات نه وه ولی روسیه په تیره د پتر نه وروسته دسره پراخه شوه او پراخیری چی اوس اوس په اروپا او آسیا کی هغی د دنیا بلا ملکونه سره را شکیل کړی او د نوری پاتی ملکونو په ایلولوکی‌ئی پروګرام په پوره جدیت روان دی .

که څه هم روسی د استعمار انگلیسی استعمار په نسبت زیات ظالم او اوږده سابقه لری ولی د کومه ځایه چی د هغه استعماری پروګرام د خپلو خاوری سره د نبنتو هیوادونو په باب تعقیب شوی او تراوسه د دی مره استعمار په وړاندی بحری لاری بندی او د استعمار نه‌ئی په امن کی

پاتی برخی په تیره په اسلامی او عربی نړی کی د انګلیسی استعمار نـه بدی خاطری لری د هغه په نسبت د کرکی او دښمنی احساس محدود او کمزوری پاتی شوی په داسی حال کی چی دا استعمار د انګلیسی استعمار پـه نسبت خو برابره خطرناک دی .

سیء ده چی استعماری قدرتونه ټول د ظلم او خیانت په نتیجه کی هیوادونه ښکیلوی او په دی رابطه هغوی ټحپلو منځو کی کـوم تفاوت نلـری او مناسبه هم نـه ده چی سړی زینی بد او زینی لا بـد وګڼی بلکی ټول ئی ډیر بد دی ولی د دی سره سره د دوی په منځ کی ډیر تفاوت شته چی موږ دلته د روسی استعمار د سیستم او استعماری پروګرام په باب خپله لنډه څیړنه وړاندی کوو .

د ولادمیر د روسی نـه چی د لینن او ګورباچوف د روسی پوری دا لوی استعماری پراؤ وهل شوی د حیرت وړدی ولی روسانو چی پـه دی پراؤ کی څومره هیوادونـه اشغـال کړی زیات ئی د دوستانه تجاوز یا دښمنانه دوستی په نتیجه کی څپله استعماری خورجینه کی تخته کړی . روسانو که هم چی په یو هیـواد تجاوز کړی هغه تـه ئی د دوستی رنګ

ورکړی او کله هم چې دی استعماری سپک قــدرت د کوم هیواد سره د دوستی لاس ورکړی په هماغه دوستی کی د مقابل لوری لاس او پښې تړلی دی د روسی تاریخ په زړه‌کی داسی په سلهاؤ تجاوزونه هم شته چی د هغه په نتیجه کی ئی پــه مقابل لوری خپله دوستی تپلی لکه څنګه چی د دی خائنانه تاریخ په زړه‌کی په لسهاؤ دوستی او معاهدی شته چی د هغو په لړکی‌ئی پــه مقابل لوری خپل تجاوز د دوستانه تعاون په نامه تحمیل کړیدی .

د روسانــو دوستی او تجاوز اصلا د روس د حاکمانــو سره ښه مناسباتو پرتله نه تلل کیږی او نه روسان د پردیــو قومونو ښه یابدو تعلقاتو ته قیمت ورکوی. روسان د استعماری پروګرام او د خپل مصلحت په حدودو کی په مخ ځی . پــه دی رابطه هغــوی کله دښمن ته هم د دوستی لاس ورکوی او کله چی د هغوی ګټی‌ئی ایجاب کــړی بیا د خپلــو دوستانو پښی او لاس هم پری کوی .

روسانـــ تل داسی پالیسی پـــه مخ بیائی چی خپلو دښمنو نظامونو ته د دوستی لاس ورکوی ترڅو هلته د ځان او روسی ګټو د پاره د قدرت په ویو رجالوکی ځانته دوستان

پیدا کړی او د هغوی په ذریعه د خپل زاړه دښمن سری خپه کړی ، ولی کله چی د یو ملک واکی د قدرت د هوسی رجالو په لاس کی ورشی بیا هلته طبیعی ده چی په ملت کی د دغو رجالو ریښی ځای نلری د هغوی بقاء بخپله د روس د ارادی پوری تړلی خبره وی او هغوی هسی د روس په پالنه او کومک حکومت کوی په هر وخت کی چی هغوی وغواړی بخپل منځ کی هغوی د روسی ګټو د خوندی کولو په حدودو کی سره وژنی او یو په بل سره عوضوی دغه د دوستی او دښمنی ګډه سیاست روسانو ته د دی فرصت ورکړ چی «تتار» او «ماری» په «۹۶۰» کال کی باشکیر په «۹۶۵» کال کی «ارسورت» په «۹۶۸» کال کی ، «سایبریا» په «۹۸۸» کال کی ، «قرم» په «۱۰۹۱» کال کی ، «ققفاز» په «۱۱۹۸» کال کی ، «اذربایجان» په «۱۲۲۱» کال کی ، «قره باغ» په «۱۲۴۴» کال کی ، «جورجیا» په «۱۲۱۰» کال کی ، «آګاریا» په «۱۲۹۰» کال کی ، «استینا» په «۱۲۹۵» کال کی ، «داغستان» په «۱۲۸۰» کال کی اشغال کړی همداسی دغه خائن استعمار په وروستیو پیړیو کی وشوای کولای چی په «۱۸۳۸» کال کی د «اشوراوه» جزیره په «۱۸۶۵» کال

کی «تاشکند» ، په «۱۸٦٦» کال کی «خوقند» په «۱۸٦۸» کال کی «سمرقند» ، په «۱۸۷۳» کال کی «خیوه» ، په «۱۸۸۱» کال کی «گوګ تیپه» په «۱۸۸٤» کال «مرو» ، «عشق آباد» ، «سرخس» سیمی ونیسی .

همداسی دی مره استعمار په «۱۸۰٤» کال کی په ایران تجاوز وکړچی بیائی په «۱۸۱۳» کال د «ګلستان» د معاهدی په نامه د ایران څخه لاندی سیمی په زور ونیوی :

«دربند» ، «باکو» ، «شیروان شکی» ، «قره باغ» او طالش .

همداسی د همدی معاهدی په اړکی روسانو ته ایران د دغو سیمو د مالکیت د دعوانه ورتیر شو :

ګرجستان ، داغستان ، ایمرتیا ، انجار .

همداسی روسانو یوځل بیا د ایران په خاوره په ۱۸۲۷ کال کی تیری وکړ چی په نتیجه کی روسانو بیا د ترکمانچی د یوی بلی خائنانه معاهدی په عنوان د «امیروان» او «نخجوان» سیمی د ځان کړی .

روسانو د تجاوز او دوستی سیاست که څه هم دغه هیواد په جنوب کی د ایران او افغانستان پولو ته راورسوه

په سلوکی اداری واحدونه له منځه تللی او پاتی واحدونه ئی هم هیڅوک نشی تمثیلوی .

اوس اوس په ولایاتو کی اداری مرکزونه ، لیسی ، ښونځی کلینیکونه شفاخانی فابریکی ، مؤسسی ، قضاء او مدارس چی د دولت پوری اړه ولری بیخی له منځه تللی دی افغانستان په یوکندواله بدل شوی چی ټپله سور او وحشی فوځ هم پکی نور «تـرا» خوری زکه هیـواد وران او خلک په کلکه د فوځ او رژیم نه کرکه لری په هره دره او هـره ناوه کی د خلکو مقاومت اډی پرتی دی فقط کابل او څو محدود ښارونه د روسانو په لاس کی دی چی هغه هم په امن او آرامی کی پوره یوه هفته هم نشی تیرولی .

په دی توګه د مقاومت څپری ترکی ، امین او د هغوی اردو ختمه کړه او ننئی روسی‌فوځ د ناکامی په غولی درولی ، هر چیری چی ولاړ شي د ماتی او تاوان سوغات د ځانسه سره راوړی .

په بین المللی ساحه کی هم مقاومت نن روسان ټولی دنیا ته خرسترګی کړی ان خپـل ملت ته هم ! د همـدی

ځو په دی ئی استعماری تنده ماته نشوه ! ان تردی چی د دی هیوادو په حدودوئی هم ځوکرته تجاوز کړی چی په «۱۸۸٤» کال ئی زمونږ د گران هیواد مسوره پنجدی اشغال کړه ولی راغلو رژیمونو د شکلی پنجری په قمار باندی د روسانو سره د خیانت دوستانه لاسونه وښل .

په باوری توگه ویلی شو چی که د روسی تزاری رژیم د واکمنانو داخلی مشکلات او ورپسی په روسیه کی دکمونیستی واکدارانو د داخلی اقتدار د ټینگښت او د دی نه او خوا په ټوله اروپا کی د استعماری دولتونو ترمنځ استعماری تضادونه چی د نولسمی پیړی په سرکی حادی مرحلی ته ورسیدل که دغه پورتنی عوامل نه وای نن به ایران ، افغانستان ، پاکستان او هندوستان هم روسانو د ازبکستان او بخارا په شان یو طرفه خوړ .

دلته دا خبره ډیره ضروری ده چی باید ورته لنډه اشاره وشی هغه دا چی دغه لوی او اوږد استعماری منزل روسانو داسی مفت هم نه دی وهلی او په دی لارکی ئی د خپلو دښمنانو نه زیات د خپلو دوستانو سرونه خوړلی دی.

داسیء ده چی روسانو یواځی په ترکستان کی د۱۹۲٤

کال په لړکی سل زره حکومتی کارمندان، تجار او بزګران وژلی همداسی هغوی په ۱۹۲۱ کال کی د قرم د نه تسلیمیدونکی قهرمان ملت سل زره مسلمانان قتل عام کړل . همداسی روسانو د قرم ، بلقار او چین ملت د مقاومت د ختمیدو په منظور زیات سایبریا ته تبعید کړل ولی هغو مزدورو رجالوچی د روس د خوښی په خاطر ئی د وطن د بچیناتو په وژلو او رټلوکی برخه درلودله هغوی هم د روس څخه څهره په مخ وخوړله مثلاً په «۱۹۲۸» کال کی روسانو د قرم اقتدار پرستی حاکمی طبقی له جملی څخه یوځل ولی ابراهیم جمهور رئیس د خپلو ټولو وزیرانو سره چنواری کړل .

د دویم ځل د پارهٔی پـه ۱۹۳۰ کال محمد قوبای جمهور رئیس د خپلو وزیرانو سره اعدام کړ .

په دریم ځـل ئی د ۱۹۳۷ کال په لړکی دریم جمهور رئیس الیاس طرحان لمړی مسکو تـه وغوښت او وروسته ئی چنواری کړ .

همداسی روسانو پـه ترکستان کی خپل لاس کښینولی حاکمان بخپله موقع په تاریخی جزاء رسولی چی د هغوی له جملی څخه د ترکستان صدراعظم مولانا «ثابت» د «التـا

والي «شريف حاج» د کاشغر والی «عثمان او راز» د دولت وزیر «یونس بیک» د تجارت وزیر «ابوالحسن» دولس جرګې رئیس «طاهر بیک» د کار وزیر دا ملا عبدالله وژلی دی.

داسې د افغانستان خائنو حاکمانو د دغه سره استعمار د دوستی لاس پښه احمقانه وسپل او د دی دوستی او آشنائی د ټینګښت په خاطر ئی د مسلمان بخارائی سر او تنه د کریملین د واکمنانو په کورکی لوښی کیښود هلته چی یوځل امان الله خان د سختو شرائطو په پلمه په ۱۹۲۶ کال کی د روسانو سره د دوستی لاس ورکړ او د هغی پسه پاس ئی د خپلو مسلمانو ورونو د دوستی او کومک نه لاس وکیښ او دویم ځل نادر خان په ۱۹۳۱ کال کی دغه دوستی تازه بلکی د روس د اطمئنان په خاطرئی خپل ورور د ابراهیم بیک د مجاهدینو د ځپلو د پاره د آمو غاړو ته ولیږه همداسی ظاهرشاه، داؤد شاه او ورپسی ټولو راغلو نوکرانو د دی دوستی لوظ کال په کال تازه کړ ولی اوس دغه حاکمان یوهم د ملت په زړه کی ځای نلری په داسی حال کی چی زیاتئی خپله د روس په لمسه تبعید او راوپرځیدل. ظاهرشاه، داؤد شاه، تره کی، امین او ببرک دا ټول هغه کسان دی چی د روسی

ـستان وه ولی ټول ئی د خپل بادار په لاس راوپرځیدل .

نو دا خبره سیء ده چی د اقتـدار هوسیان ارمان لری خو عقل نه .

آیا د لینن هغه وعده اوس پوره شوه چی پـه ۱۹۱۷ کال کی ئی مسلمانانو ته داسی وراندی کړیوه :

«ای د روسی مسلمانانو ! ای د شرق مسلمانو ! مونږ او تاسی ټول پـه داسی لاره روان یو چی نړی به د پاځون دوران ته ولیږدوی تاسی ته مو سترګی دی او له تاسی سره د لطف او مرستی لټه کوو» .

حاکمی طبقی خو د خپلی خاوری او ورونو د سروینی په روسی بادارانو و پیرزیلی آیا روسانو په دوی اعتماد وکړ!
آیـا د روس سره د کابل سرخوړلـو او وطن پلرونـکو حاکمانو دوستی د روسانو په مخ د افغانستان پولی د روسی د تجاوز نه وساتلی ؟

دا هغه سوالونـه دی چـی د روسانو تـوره استعماری سابقه ئی ژوندی ځواب دی .

اوس د پاکستان او نویو افغانی اقتـدا چیآنـو واردی چـی د سیاسی حل پـه رابطه د روسانـو لطف او پیروزینی ته پهکومه پیمانه انتظار لری او د دی تاریخی قضیی جهت د ملت په لاس‌کی پرېږودی او کهٔی د روس د نفاقجنی پالیسی عهد ته سپاری ؟



# ملت او مجاهدین

دا طبیعي ده چې ملت او مجاهدینو ته ترټولو نغدہ او په زړه پوري خبره نن د رسوا روسي قواؤ هر څه ژر وتل دي او پدې وروستیو وختوکې د مجاهدینو سره د دې امید ډیر خوښیدلی چې روسان به حتماً یوه ورځ افغانستان خپله خلکو ته پریږدي د همدې ځایه ملت ته تـوده خبره خپله د سنګر تـاوده ماتل دي ولې د کومـه ځایـه چې د روانـو مذاکراتو پـه رابطه د افغانستان د مسألې سیاسي حـل ملت ته راډیوګانی او ورځپاڼي ترغوږو او ترسترګوکوي کیدای شي دا مطلب ملت سره پدې حدودوکې مطرح وي چې هغه به د افغانستان د خلکو د مقاومت په هکله د نړۍ د خلکو او هیوادونو پـه دریځ کې بدلـون راولي ولې دا چې د دغه بدلون عکسي‌اغیزه به د ژنیو په خوا د ملت توجه ترکومه

اړولې وي او ترکومه حده بهٔئي واړوي دا هغه سوال دی
چې د سیاسي‌حل دسیسه پلي خواوي هغه ته ځواب جوړوي .

دامیء ده چې جنګ بـه اوږدیږي او هغه به د ملت
زیاتې قواوې او امکانات په او روسپاري ولې آزادي هم مهمه
مسأله ده او د غلامي بار ته هم د ملت اوږې جوړې ندي
د همدې ځایه وطن ته دامن او مهاجرینو ستنیدل په ملت
کې د ۵۰٪ پـه سلوکې زیاتـو هیوادوالـو له نظره بڅېله
د مقاومت پوري‌تړلې خبره ده ولې هغه وګړي چې د سیاست
د نړۍ مسلط معیارئي په عقل او فکر توربڅي وهلي او خپل
وطن تـه دامن او نظام را ستنیدل د اخبارونو او راډیوګانو
له لارې چغله‌کوي هغوی طبعاً تریوه حـده د ژنیو ناڅي
کړي غوښي‌ته د بې ځایه امید پاستې بڅوي البته پدې رابطه
د هغو جهتونـو رول د یادونې وړدی چې د اسلام له خوائې
د عشرت په ډډو د اسلام د عدالت ازغي چوخیږي د همدې
ځایه خو هغوی قصداً هڅه‌کوي په ملت‌کې همدا روحیـه
تقویه‌کړي چې د سنګر په ځای د هغه پام د ژنیو پسکڼکو
ته را واړوي‌که څه هم دغو نیمژوانده سیاسي چینلونو پدې
برخه کې ډیرې قصیدې بڅي‌کړې خو د ملت سره د قضیې

د حل په رابطه د مجاهدو ډلو د قناعت سوال هغه نمخې دی
چې د سیاسي حل د هوسیانو د تبر مخه ئې نیولې ده .

هغه ډلې او وګړي چې د سیاسي حل په آرامه بدرګه
غواړي افغانستان تـه ستا نه شي او په ملت کې د هغوی
شمله هم یوازې د همدې لارې جګیداې شي که څه هم
د یو تور سازش د پاره د هغوی زړونه باغ باغ کیږي ولې
دا چې هغوی د کمونیزم په راتګ پخه ساتی خوړلې او
د مقاومت په ساحه کې هم یوازې د خبرو او تبلیغاتو په
خاپوړو روان دي هغوی نشي کولاې یو طرفه لاس پداسې
ابتکار پورې کړي چې هغوی په پریکړي توګه د سیاسي حل
د مخالفینو په وړاندې په ډاګه ونه دروي .

که څه هم ګرانه ده چې ملت په آساني د سیاسي حل
په تورو ځالونو کې راګیر شي ولې په هغه صورت کې چې
د قضیې محلي او بین‌المللي موازین بدل شي ډیره لیرې هم
نـه چې د ملت دغه د روس د جنګ د ازمیښت نه وتـلی
تصمیم د سیاسي حل په تورو سربوکې را بند شي ولې داسې
نظام چې له همدا اوسه ملت د هغه په استقرار او استحکام
باور پیدا کړي او د هغه په نسـ[...]ـاوبـه وسکی



ممکنه نده چې د ژنیو د خبرو د لارې جوړ کړل شي .

که څه هم د کمونیزم د خلق او پرچم د نظامونو وحشت او مظالمو ملت د تیرو نظامو د مقایسې په رابطه په یوه مغالطه کې غورځولی دی ولی دا مسلح مجاهدین چې د روس سره جنګیږي او په افغانستان کې نن خبره د هغوی په لاس کې ده د هغوی قناعت او تصفیه دواړه هغه لوړې څوکې دی چې ژنیو او د تیرو نظامونو سازشي رجال به د هغه په وړاندې سرکوزي پاتې شي .

ممکن د خبرو په میز شخوندو هونکې دپلوماتان او په غرب کې د غربت جول وهلي با مبران یوه ورځ داسې تصمیم ونیسي چې هلته به ئې د مجاهدینو د قناعت او یا تصفي پوره حساب نوې کړی خو دا کار که څه هم قضیه د روسي په ګټه یو قدم نوره مشکله کړی خو په هیڅ صورت کې ممکنه نده چې هغوی پدې اخ ودب کې د داسې خوا په حیث مطرح کړي چې هغوی روس او مجاهدین دواړه قانع کړی که څه هم اوس هغوی په ټپله خوله کې د بې طرفی کرت نیولی ولی حوادث به ئې یا د مجاهدینو یا د روسانو ضد جهت ته راکاږي چې هلته ممکنه نده بیا هغوی خپله بې طرفي وساتي



کیــدای شی ســکو د خپــل لوکــر رژیم د
د روسی فــوځ د حیثیت په خاطر پــه افغانستان کی
د تویــدولــو سلسله تـــوره هــم اوږده کــړی ولی د
اقتصادی او ځانی تلفاتو برسیره د جګړی ادامی روسانو ته
د افغانستان د پولونــه بهر په تولــه نړی کی هــم مشکلات
پیدا کــړیدی ، په افغانستان کی د روس د مظالمو په ارتباط
هره ورځ تازه اخبار اوری او د همدی مظالمو لاسله هره ورځ
یو یادوه هیواده دروسی په دیکار بلوائیچی دا کار اوس روسان
تر هرڅه زیات ځوروی ...

پــه دی لړکی روسانو ډیر کلمونــه
انحستی او ډیر پلانونــه ئی بــه کار وړی ترڅــو د دی روس
شرموونکی فضاء نه ځان بهرویاسی. کــه څــه هم پــه دی تیرو
کلونو کی د کابل او سکو مهکو مالووچیانو ځوځله بهرنی
احزاب او ژورنالستان راوبلل پــه ډیرو لــوړو مصارفــو او
فوق العاده امنیتی تدابیروئی لاس بوری کړترڅو دیوی هفتی
یا د هفه نه هم کمو ورځو د پاره د کابل حالات آرام وښیـه

او یا هغوی د یو جهت په حیث مطرح شی .

د افغانستان بهر خو روسانو هم د افغانستان په باب د ځان سره ډیر ښه پاخه کړیوه ولی د افغانستان د ننه حالاتو روسانو ته وښودل چی اوریدل او لیدل ډیر توپیر لری . نن که نوری خواوی بیا هم د افغانستان د حالاتو په هکله د روسانو دغه تجربه غواړی تکرار کړی نو سبا به هغوی خپله پوه شی چی د ملتونو که څه هم د حسابه ایستل آسان دی خو د حساب پاکول ئې بیا ډیر ګران کار دی .



ځایه ده چي روسان د افغانستان د مسألی د جنجال نه د خلاصی په هیله د خبرو میز ته د سنګر د اوخړونه ترجیح ورکوی نه په دی خاطر چي زمونږ د ملت برحقه مبارزه تسلیم او زمونږ ملت خپل سرنوشت جوړیدو ته پریږدی بلکی په دی خاطرچي د میز خوا د مجاهدینو د تګان ورکونکی حضور نه‌یي برخی وینی .



# جنګ او خبری

د مسکو سرتمبه اقتدارچیانو د جنګ خبره په افغانستان کی ښه وتلله او په افغانستان باندی ئی د خپل تجاوز د اداسی او تجاوز ګرو فوځیانو د ناکام حضور په نتیجه کی د افغان ملت سور او اوږده پوره و پیژنــده تــردی چی د روس د ځوانی حوصلی واکمن ګورباچوف دی جګړی ته د ناسور زخم نوم ورکړ .

روسانو د مقاومت پــه پیل کی داسی نــه وه پتیلی چی د هغوی مزدور رژیم ته به داسی مشکلات پــه مخ ورشــی او دا ئی بېخي په خیال کی هم نه ګرځیدله چی افغانستان ته به د روس د سره فوځ په لیږلو مقاومت او جهاد ځوهنتونه زیات عمر وکړی او د میاشتو به حساب ئی هغوی د خپل

فوځ د عالی رتبه صاحب منصبانو د پاره ښائی ډیر مدالونه تهیه کړی وی ولی په دی نه پوهیدل چی د افغانستان خلک په جنګ کی خپل مقابل لوری ته د ماتی فرصت نه ورکوی ولی د مدال د کټلو فرصت په دی خاوره کی چاته په لاس نشی ورتلای د همدی ځایه روسی فوځیان هره ورځ د دغی بری په امید بلاسرونه په زمکه پردی خو بری چیری !!

د جنګ په دوران کی د روسی فوځ او د کریملین د واکمنانو مناسبات یوی نوی مرحلی ته ننوتل دواکمنانو طلائی هیلی او طاغوتی هوسونه د فوځ ناکام رول پر زمکه وغورځول فوځ هم د خپل کمزوری او پهلوارظالمانه استخدام او قوماندی لامله داسی فعالیت نکوی او یا نشی کولای چی د روسی د نړی خور استعمار طاغوتی حیثیت په ځای کړی د همدی ځایه ده چی افغانستان ته تللی فوځ روسان په سخت او حرج موقف کی درولی دی . جنګ ګټل کیږی نه ولی په افغانستان کی هره ورځ چی په جنګ تیریږی روسان په ټوله دنیا کی لاهم شرموی .

د روسانو سیاست هغه وخت خپله خامی وښودله چی

ظاهر شاه او ظاهر شاهيانئی مخکی له وخته لیری کړل او بیا دا چی د ترکی د قبائلی او کمولستی مزاج مخلوط حزب تهئی اقتدار ور ورسپاره د افغانستال په خلکو کی دکمونیزم د مفکوری تولی لاری وتړلی او کله چیئی د ترکشاه او ببرکشاه نه د دفاع په خاطر افغانستان ته خپل فوځواستاوه د افغان بچی بچیئی په دی قانع کړ چی نور روسدافغانستان د خلکو دوست کیدلی نشی . ولی بالاخره د افغانستان پـه باب د بریژنیف په جهل ولاړ موقف او د مسکو خامسیاست د سیاسی اشتبـاه په پوله کی و نه دریـد بلکی همدی اومه ، ناسنجولی پالیسی څپلوار روسیفوځ هم د دی بدنامیو اوسپیتانو ډنډ ته راکښته کړ چی نن په افغانستان کی د روسانو د تولو زیانونو په سرکی همـــدا د روسی فوځی بدنام وضعیت مسکو ترهرڅه زیات څیری . د روسی فوځ یو کلن ناکام ماموریت په حقیقت کی روسی مشران د افغانستان د قضی د حل نـه د خپل فوځ بدی ورځ او د فوځ د بدنام حـالت پـه رابطه د روسی ملت د احساساتو توازن او ذهنیت آرامولو راستانه کړل زکـــه د افغانستان قضیه او اخ ودب د روسی ملت د پاره کومه دلچسپی نلری هغه څه چی د روسی ملت د پاره

د اندیښنی وړده هغه پــه جـبر او اکــراه د لیږلی روسی فوځیانو بدانجام دی .

کیدای شی تراوسه روسی وا کمنان د ورپیښ جنجال په محاسبه کی حیران وی زکه هغوی خپلی انقلابی پالیسی «د هغوی په خواه» او د خپل فوځ غوځ هجوم د دنیا په ډیرو سیموکی د بری او تسلط پــه گڼهی کیښ‌ولی وه ولی افغانستان د هغوی د تیری محاسبی او ارقامونه لار بدله کړه . ښائی د افغانستان جنگ په روسی قیادت کی داختلاف او خوجهتی زاړه جهتونه سره ډیر لری کړی وی او ممکن د دی قضی په رابطه د جگړی او سیاست په ډگر کی نـور نوی اختلافات او جهتونه منځته راغلی وی ولی دکومه ځایه چی یـه پـه عمومی توگه د روس قـوم د حیثیت پوری اړه لری ښائی دغه اختلافات او جهتونه د قضی د حل پوری خپلی پولی محدودی وساتی خو په طبیعی ډول دا اختلافات به یو وخت خپلی‌قوی ځپی د روسی سیاست په مخ حتمی غوړوی، ولی ښبی ښبائی‌ئی افغانی مجاهدینو د روسی فوځ ذ دویم کال په سرکی هلته سرگندی ولیدی چی د ژوبلی او کمنانو له‌خوا د جنگ د لوخړو ترشا د قضی د حل د پاره د ... وکونکسی



جوړ کړ . دغه‌گوڼګوسی یا دپلوماتیکو ساسی هلوځلو د لاری د قضی محدود ساتل او حل نخپله د روسی د سیاست او فوځ د رجالو د اختلاف او خوا بدی نه چیغه‌اخلی زکه داختلاف پرته دغی مریضو خبرو په نسبت د روسی واکمنانو قانع کیدل یو غیر طبیعی کار دی .

کیدای شی د اختلاف پرته نور عوامل هم وی چی روسی واکمنان ئی د جنګ د طرحی د تعقیب او توقیف په خاطر د تانګونو دجنګولو پرځای د میز خواته راکښلی وی . چی هغه د افغانستان د وضعی په ارتباط د روسی واکمنانو بیچارګی نه لار نیسی .

په هر صورت څلور کاله مخکی د جنګ او تجاوز د ادامی ترڅنګ روسی واکمنانو خپلو نوکرانوته په کابل کی دقضی د حل په رابطه د افغانستان دګاوندیانو سره دتفاهم او روغی جوړی طرحه وړاندی کړه ولی په هغه موقع کی د افغانستان د خوریدلی اوضاع په ارتباط د مقاومت ابعاد ډیر پراخ او د افغانستان د قضی په نسبت د نړی د سوله دوستو هیوادو خوا خوږی او سیاسی ملاتړ د کابل رژیم‌سره د تفاهم د حدودونه اوچته وه هغه.چی ایران په کلی توګه

تفاهم رداو پاکستان هم د مستقیم تفاهم نه انکار وکړ ولی د مقاومت تشدد او ورسره جوخت د نړی د خلکوخواخوږی چی روسان ئی په سیاسی او دپلوماسي حلقوکی محاصره کړی مسکو او کابل دواړه د کوردویز د منځګړتوب د لاری غیر مستقیمو خبروته اړویستل .

ممکن دا خبری بی خی پـه ځای وی چی روسان د سیاسی خبرو د باب د خلاصولو نه په لمړی قدم‌کی‌دروس ملت او بیا د دنیا او افغان ملت توجه بلی خوا ته واړوی او د نظامی تجاوز پاتی پړاؤ د دې لاری تقویه او تشدیـــد کړی په دویمه درجـه کی ښائی د خپل فوځ د سړی تجربی جذر او مدر پـه سیمه کی د روسی امنیتی او سیاسی حدودو په ساحه کی خوندی وساتی ترڅو د جنګ او خـبرو په دی موازی جریانوکی داسی مناسب فرصت تـرلاسه کـړی چی هلته جنګ یا خبری د قضی په حل کی موثررول ولوبوی .

که څه هم د افغانستان دقضی په باب بدګمانه مبصرین او سیاستمداران په دی خبره غـوړونه ږره وی ولی حقیقت هم دا دی چی نن پـه افغانستان کی روان جنګ د روسی اهدافو د پاره او روانی خـبری د روسی د تجاوز او اشغال

د توجه په جهت کی په کار ورل کیږی .

د خبرو د پیل او ادامی طرحه نن روسان د خپلو نظامی پولونو د تلافی ، د نظامی تجاوز د متوازنی رهبری د تحکیم په منظور داسی په کار وری لکه څنگه چی نظامی او فوځی تجاوزئی د سیاسی غلطیو د تلافی او د سیاسی متوازن حرکت د بقاء په خاطر په مخکی نیولی دی .

پرون روسانو په افغانستان کی د خپلو سیاسی پلانونو د غلطیو نه را پیدا اوضاع د توازن د پاره نظامی قوت استخدام کړ ، ولی نظامی ناکامی ئی سیاسی ناکامی ورغبرگه کړه . اوس هغوی غواړی دغه سیاسی او نظامی نقصونه او خامیانی د سیاسی او نظامی جوخت فعالیت په نتیجه کی جبران کړی. که څه هم سیاسی غلطی او خامی اوس د تلافی وړنه دی زکه چی اوس د جگړی د دوام په نتیجه کی د افغان ملت سره د روسانو د ریاکارانه دار مدار پردی د جگړی او جنگ په برچه و شلیدلی خو بیاهم د نظامی خامیانو دتلافی د لاری روسان ممکن د خپل خام اوشرمیدلی سیاست د ادامی د پاره نوی رنگ ورکړی او د نظامی تجاوز سره د غبرگو شویو خبرو هدف همدغه ده چی نظامی څورونکی اخ ودب

بیرته د خبرو د لاری په هاغه سیاسی اخ ودب بدل کړی، خو د نظامی اخ ودب توقف او پــه ځــای‌ئی د یو سیاسی فعالیت ادامه یـوازی د همدی جنګ او خـبرو د متوازی جریان دلاری ممکن ښکاری زکه نظامی حرکت پـه مقاومت کی د هاغه جهتونـو د تضعیف پـه جهت کی کارول کیږی چی هغه په سیاسی ډګرکی د روسانو سره رنګ نشی‌اخستلای لکه څنګه چی سیاسی او دیپلوماسی هلی ځلی ښـائی هماغــه جهتونه سره نـژدی او تقویه کـړی چی روسانو ته د دی فرصت ورکوی چی تیری غلطی تلافی او په افغانستان کی د خپل سیاسی تحرک شکیدلی مرحلی سره پیوند کړی .

د روسانو د «جنګ او خبرو سیاست» د پیل نـه تـر اوسه د روسانو د نظامی او سیاسی کمزوریو د تلافی‌په‌غرض په مخ روان دی چی د همدی پالیسی په لړکی هغوی‌دخپلو محلی او بین المللی پوره او نیمـه مخالفینو سره د افغانستان په باب د خپلی طرحی د عمده نقاطو په هکله یو مثبت‌تفاهم ته د رسیدو په لاره کی دی چی ښائی پاکستان پـه خلاصه او ښده خوله ، ایران په نیمـه خلاصه خوله د دی طـرحی او تفاهم ژونـدی مثال وی چی دا پـه حقیقت‌کی د همدی

د اقتدار چوتری ته ختلی وه او د ځمکی او اسمان حساب تری غلط وه تقریباً لس زره کورنۍ د طرد او بی معاشه تقاعد د رانسکوری کاسی لاندی کړی.

د سری کودتا په لمړی کال د انقلابی اقداماتو په لړکۍ تقریبا پنځه سوه زره کورنی یا څلور میلونه افغانان د څرخی د تور زندان د اوسپنیزو دروازو سره وتړلی او تقریبا د افغانستان نیم نفوس په دی مرحله کی حتما د یو یا دوه بندی خپلوانو د خلاصون د پاره لاس په دعا وه زکه پوښتنی او دفاع پخپلوار زندان ته د را کښلولو پلمه وه.

د ۱۳۵۸ کال په سرکی تقریباً د افغانستان د خلکو دریمی برخی د هجرت د پاره لاری چاری لټولی او د هجرت په فکر او اندیښنه کی وه.

د کودتا په لمړی کال کی په پوځ او نورو ملکی ادارو کی تقریباً څلور سهمی تصفی سرته ورسیدلی چی د دی تصفیو په نتیجه کی په زرهاو مامورین پا طرد یا په بند او مرگ محکوم شول.

په همدی کال کی تقریباً دری میلونه وگړی د انقلابی اصلاحاتو په پلمه پوره متضرر شول چی د دوی په جمله کی

د «جنګ او خبرو د سیاست» عاجله میوه ګڼل کیږی .

اوس اوس روسانو سره د دی باور پیدا شوی چی د خبرو د میز دلاری کولای شی خپل سخت سری مخالفین وکړوی زکه د خبر و په میزکی د هغوی ، نه حضور روسانو ته دقضی نه د غلطی بهره برداری او د قضی د مهموټکو او خواؤ د تراشلو فرصت برابر وی .

د «جنګ او خبرو» سیاست که څه هم نه شی کولی په بین‌المللی ساحه کی د روسانو لویدلی پرستیژ او په ملی سطحه د افغانستان د خلکو سره د هغوی په اصطلاح دوستانه روابطو د عادی د پاره لار هواره کړی خو د همدی مکرو بی او متناقض سیاست له مخی روسان غواړی چی د جنګ او تجاوز د خشنی سیما په لړکی ملت د خبرو او تفاهم په روسی طرحه قانع او د مقاومت مسئول جهتونه‌په حرج موقف کی ودروی .

### خڅګه خبری

په دی خو یو عادی افغان هم نن پوهیږی چی که د روس پرضد د ملت دغه بی کچه مقاومت او قربانی او د ملت سره په جګړه کی د روسی فوځ د بی چارګی خبره نه

وه ممکنه نه وه چی روسی طاغوتیان او د هغوی بی حیا نوکران دی د افغانستان قضیه تسلیم او د هغی د حل په باب د خبرو او تفاهم لاره ونیسی .

د مقاومت په پیل کی روسانو زیات کوښښ وکړ چی دا قضیه د چین ، مصر ، پاکستان ، ایران او بالآخره د امریکا د توطئو زیږنده وښیء او د پاکستان حکومت ته خو د کابل رژیم او روسانو څوڅو ځله تاوده تاوده اخطارونه ورکړل ترڅو د دی ناپاری روسی تجاوزیو قانونی حرکت او اقدام وښیء او پاکستان دیته اړباسی چی په خپله خاوره کی مهاجرین یا ونه منی او یا خوئی بیرته د رژیم سرحدی ملیشه ؤ ته وسپاری .

د خبرو د پیشنهاد یا د سولیزی لاری د قضی د حل طرحی نه مخکی روسانو د پاکستان او ایران په رابطه مسلسل پوچ اتهامات ، احتجاجونه ، اخطارونه حتی نظامی بدماشی یا تجاوزونه ټول استحان کړل اوکله چی دا اخطارونه او تهدیدونه بی تاثیره پاتی شول بیا د کابل او مسکو تکمارانو لاس په بله دسیسه وهلی او په وار وارئی د قضی د حل په رابطه ایران خاصتبه پاکستان ته د خپلو په اصطلاح

صمیمانه نیاتو اطمئنان ورکړی که څــه هم د کابل غاښن ماتونکی غداړونه چی د ترکی د وخت نه تراوسه په پاکستان او ایران قرض پاتی دی تر اوسه د کابل رژیم په غاړه د لعنت یوبل توق پروت دی ځکه چی هغه چی د بیگانه فوځ پـه حمایت کی پروت رژیم خپله شپی په ویره تیروی د هغوی‌له خوا نورو ته د تهدید مسأله یوه خندونکی ډرامه ده خو بیا هم د هغوی د خــبرو طرحــه یوازی د پاکستان له خوا تائید شوه او هغه هم د ملگرو ملتونو د منشی د ذاتی نمائنده د نظارت لانـدی او د کابـل او اسـلام آبـاد د نمائنــدگانو د شا په شایا غیر مستقیمو خبرو په حدودو کی ، ځکه چی د دنیـا اکثریت هیوادونه د کابل رژیم په رسمیت نـه پیژنی د بلی خـوا د اسلامـی هیوادونـو پـه کانفـرنس کی د روس تجاوز د غندلو برسیره د کابل رژیم یو غیر قانونی اوغیرملی رژیم وگنل شو او پــه همدی دلیل د اسلامی کــنفرانس د مؤسسی لــه عضویت څخه وویستل شو . د دی بـرسیره په افغانستان باندی د روس نظامی برآلاتیری د نړی د هر ا ضمیره ملت او ډلی زهنیت د افغانستان د خلکو سره خوا ـ خوږی او د روس په ضد کرکی او نفرت ته را واړه‌و ، چی

دغی سیاسی نړیوالی فضا پاکستان ته د دی فرصت ورکړ چی د کابل نه د خیبر خوا ته د را روان خطر مخه یو قدم وړاندی او پــه مناسب فرصت کی ونیسی په ظاهری لحاظ د مخامخ خبرو رد پاکستان مخامخ په یوه قوی موقعیت کی درولی وه او د همدی ځایه پاکستان مخامخ خبرو ته حاضر نشو ، ولی بیاهم لکه څنګه چی روس جګړه او تجاوز په افغانستان و تپله د افغانستان د قضی په ارتباط په پاکستان باندی ی دا بی ربطه روانی خبری و تپلی نرخو پاکستان د دی تپلی میز په خــبرو د یوی خوا د روس غصه کمه کړی د بلی خوا د خپلو داخلی مخالفینو د پروپاګندی غړی خفه کړی لکه څنګه چی په دریم درجه کی د دی خبرو په جریان کی ځان د روس دنیاتو او نفسی حالت نه خــبر او پــه نتیجه کی د افغانستان قضیه د خپلو پولو د امنیت د خوندی کولو په سرحد کی وپالی .

ولی دا خبری او په دی ډول چی هغه تعقیری بی ځایه او خطرناکی خبری دی .

## بی ځایـه خبری

د افغانستان د قضی د حل پــه رابطه هغه وخت

د خبرو او تفاهم پیشنهادونه وشول چی مقاومت په نظامی بعد کی د روسانو ملا ورکړه او روسی سور فوځ په یوه نه ختمیدونکی جګړه کی ونښت. د خبرو انګیزه باندی مو مخکی څه ناڅه رڼا واچوله خو نه هغو پرونیو تورو پیشنهادونو اوطرحو او نه د دی شپږو مختلفو پړاونو خبرو چی د کوردویز په دیپلوماسی بکسګی کی کابل او اسلام آباد ته څوځله رد و بدل او د دواړو رژیمونو پـه قدانـدام ئی ونیولی یوه هم د روسانو د سالم ضمیر یا د قضی د حل په رابطه د هغوی د تعهد نه نمائندګی نه کوی او د همدی ځایه ویلی شو چی دا خبری بی وخته او بی ځایه خبری دی. دا چی داخبری ولی بی وخته او په دی وران غیر طبیعی ډول پیل شوی دا هغه پوښتنه ده چی د روس سپیره او پر چل ولاړسیاستئی ځواب وائی او د از که چی که خبری پخپل وخت چی حتماً رااتلونکی دی او پخپل طبیعی او معقول چوکات کی مطرح شوی وای په هغه صورت کی ممکنه نـه وه چی روسان د خبرو د لاری د قضی مخ بـدل کـړی لکه اوس اوس چی مکار روسان غواړی د خبرو دلاری د افغانستان قضیی تـه بل رنګ او د خلکو مقاومت ته سپکه بڼه ورکړی ترڅو د جنګ

او تجاوز نه ورپیښه بدنامي او بدرنګي د دی بې وخته او بې ځایه خبرو د فني کارولو دلاري تلافي کړي .

دا چې مونږ وایو دا خبري بې ځایه دي البته چې عمده دلایل ئې هم له مونږ سره شته او هغه دا چې :

۱ـ دا خبري د قضي د اصلي جهتونو ترمنځ نه دي.

۲ـ په دې خبرو کې روسان رښتني نه دي .

۳ـ مجاهدین او ملت‌ئې نه تائید وي .

٤ـ ملت د خبرو په جریان کې نه واقع کیږي .

٥ـ د روسانو تجاوز ځرګند او د خبرو د پاره موضوع نشته ځرنګه چې روس خپل فوځ بې له کوم مشورې څخه افغانستان ته لیږلی دی کولای شي چه هاغسې بیرته‌ئې شاته کړي .

## خبري د اصلي جهتونو ترمنځ نه دي :

د همځه ابتداء نه چې د قضي د حل د پاره تفاهم او سوله‌ایزه لار پیشنهاد شوه تراوسه پوري خبري د پاکستان او کابل رژیم ترمنځ رواني دي چې دا دواړه جهتونه په‌هیڅ صورت د افغانستان د قضي اصلي جهتونه نه دي .

پاکستان لکه څنګه چې د مجاهدینو ځیني مشران وائي

. قضي نه متأثـر طـرف دي ولي د قضي اصلي جهت نشي کيدی. د افغانستان په د تنه کې روان بدحالت د افغانستان د ملت او د تپل شويو رژيمونو تـرمنځ اخ ودب دي لکه څنګه چي په دويمـه مرحله کې هغه د افغانستان د ملت او د روسي د متجاوز فوځ ترمنځ روانه جګړه ده چي پـه دي صورت کې زمونږ په هيواد باندي يو بهرني هيواد تجاوز کړی او ملت د دغـه بهرني هيـواد د فوځ او تجـاوز په وړاندی مقاومت کوي . داسي نه چي دلته کومه مسأله د پاکستان او کابل ترمنځ پرته ده زکه پاکستان برسيره پردي چي په افغانستان کې د تجاوز او لاسوهنې استعداد نلري په افغانستان باندي د روسي د جارحانه تجاوز وروسته خپل موجوديت په مخاطره کې وينې او فقط په همدی حـدودو کې پاکستان د افغانستان د خلکو سره خپله خوا خوږي کوي زکه اشغال شوی افغانستان د پاکستان سرحدونـه او مستقبل دواړه تهديد وی او د پاکستان په وړاندی داسي دلائل چي هغه د خپل هيواد او خلکو په رابطه د روسـي د بعدي تجـاوز او هجـوم پـه نسبت مطمئن کـړی بي خـي لـه منځه تللي او د همدی ځايه پاکستان د يوی اشغال شوی افغانستان

د حاثـی او ملاتړ په برخه‌کی ځان پـه سلمهاوځله په افغانستان باندی د یومتجاوز قدرت په نسبت برحق او د خیل‌گنی او دا منطقی هم ده. دا به څنگه پاکستانی حکومت او یا پاکستانی ډله وی چی هغه به د روس له خوا اشغال شوی افغانستان کی د دی جرأت ونلری چی د افغان ملت سره په دی بد مورځ کی په دی خاطر خپله خوا خوږی پرېږدی چی هلته متجاوز روس خپه کیږی؛ ان تردی چی نني پاکستان چی زمونږ د ملت سره ډیری تاریخي کلتوری او دیني عمیقی اړیکی لری د دی حق لری چی په افغانستان باندی د تجاوز په صورت کی د افغان ملت ترڅنگ و دریږی هودا حق د پاکستان خلک لری ولی دا حق نلری چی د افغانستان د خلکو د سرنوشت او آینده فیصله د ځانه یا د نورو په گډون او زمونږ د ملت په غیاب کی وکړی لکه په اوسنیو خبرو کی چی د داسی یو کار تصور او گمان زیاته شویدی.

که څه هم روسان خپل تجاوز داسی توجیه کوی چی هغوی د یو قانونی رژیم په غوښتنه کابل ته راغلی هغه رژیم چی تراوسه‌ئی نشی مشخص‌کولی او د بلی خوا داسی وائی هغوی «روسان» د خپلی دوستی او معاهدی له مخی

افغانستان تــه راغلی چی د پاکستان او چین له خوا پیل شوی مداخلی وتکوی . که څه هم زمونږ ملت تـه دغسی توجیه او دلائل هیڅ قیمت نلری او هغه خپله لاره‌تشخیص کړی خپل دوست او دښمن ئی پیژندلی دی خو دروانو خبرو لړی بیا د پاکستان موجوده او پټ رول ځپله دا خبره‌تائید وی چی د افغانستان قضیه اصلاً د کابل او اسلام آبادتر منځ مسأله ده چی دا کار زمونږ د ملت د پاره خواشینوونکی دی زکه په پاکستان‌کی د مهاجرینو موجودیت او د پاکستان د حکومت او ملت انسانی خوا خوږی د دی معنانه‌ورکوی چی مونږ دی خپل مستقبل د بل چا په فرمایش او توجـه جـوړ کـړو مونـږ چی د روس پـرضد د جنک او مقاومت استعداد لرو څنکه بیا په سیاسی ډگر کی دمره بی چاره شو چی زمونږ راتلونکی دی نورراته ټاکی .

کیدای شی پاکستان سره د دی دلائل وی چی هغه د افغانستان د قضی په باب په روانه پالیسی قانع کړی ولی په هیڅ صورت کی منطـقی نـه ده چی هغه دی زمـونږ ملت قانع کـړی د پاکستان ملت او حکومت کیـدای شی خپله همدردی د خپلو سرحدونو د امنیت په حدودو کی‌دافغانستان

د ملت سره وزنډوی او دائی حق دی کله چی دغه همدردی د هموی مستقبل تهدید کړی او فکر وکړی چی بله داسی لاره هم شته چی د پاکستان سرحدونه د روسی روان تجاوز نه خوندی وساتی کولای شی هغه لار انتخاب کړی او دا حق د هغه نه څوک نشی اخستلی ولی د دی حق په هیڅ صورت کی باید ځانته ورنکړی چی د پاکستان د امنیت او سلامتی په خاطر په خپل همسایه ورور هیواد باندی لاره جوړ کړی .

پدی روانو خبروکښی چی پاکستان د یو جهت په حیث مطرح شوی او خبری نی دکابل رژیم سره غیر مستقیمی ادامه لری ولی هغه مجاهدین نه تمثیلوی . زمونږ ملت نه تمثیلوی او دا ځکه چی اصلا قضیه د روس او افغان ملت ترمنځ قضیه ده د دوی په خبروکښی د پاکستان ګډون داښی چی قضیه د پاکستان او کابل رژیم د خرابو مناسباتو نه را پیدا شوی ده خو دا هیڅ افغان نشی منلی ځکه مونږ د هیڅ بهرنی ملک دښه او یا بد تفاهم نه یاهدو مناسباتو د پاره خپل ملک نه شو ورانولی اونه خپل هیواد ته بیګانه قوځونه راغوښتلی شو خو د پاکستان د حکومت جهت کیدل به

پنځه سوه زره کورنیو خپله نیمه شتمني ، یو میلون انسانانو خپله دریمه برخه شتمنی او سل زره کورنیو خپل دوه ثلثه شتمنی او متباقی وګړو خپله څلورمه پنځمه .... برخه شتمنی د لاسه ورکړی .

دا چی د انقلاب سره د تعاون او کومک په عنوان د خلکو نه نقدی او جنسی باجونه اخستل شوی د هغو اندازه خو د دی نه اوچته وه . یوه آفاق احصایه ښیء چی تقریباً د افغانستان دوه برخی خلکو شاید په متفاوته اندازه دغسی ډول باج حکومت ته ورکړی وی .

دا د یوی خوا د بلی خوا په یقینی ډول ویلی شوچی د ترکی د رژیم په لمړی کال کی په هرو سلو نفروکی ۲۰ کسانو ته د پت او حیثیت ژوره صدمه رسیدلی ده .

د ترکی د رژیم په لمړی کال کی په هرو سلو عالمانو کی ۹۸ عالمان داسی دی چی یا بندی شوی یا تهدید شوی یا توهین شوی دی لکه څنګه چی د همدی کال په اوږدو کی همدا ځپل شوی عالمان د دری څلونه ترلسوځلو پوری د محلی او دولتی کمونستانو له خوا تهدید یا توهین شویدی .

پـه آخـر کی قضیه همدی خـوا راکاږی خـاصة چـی د دی ټولو خبرو محتوی او کیف هم تر اوسه پټ پاتی شوی دی.

په دویمه درجه کی د کابل رژیم مطرح دی هغه چی یوه ورځ هم د بیگانه فوځ په غیـاب کی خپل تسلط نشی ساتلی، هغه چی د تاشکند او مسکونه د ټانگ په شا زموږ ملک ته پهمسخره ډول راوړل شویدی او د بهرنی فوځ پـه قوت ئی فقط یوه رادیو فعاله ساتلی او نورئی هرځـه دلاسه ورکـړی .

نن په افغانستان کی د تقریباً ۳۰۰ اداری واحدونـو له جملی ۲۰٪ئی هم نه دی فعال قضائی، تعلیمی، صحی ... اکثره عمرانی پروژی .. د تـوقف په حال کی دی . د ملت دریمه برخـه مهاجره او پـه همدی تعداد هـیواد کی د ننه د خپل ټبر او کلی څخه بی ځایه شویدی دوه برخی هیواد وران او تقـریـباً ملت په ۸۰ فیصده خاوره کی خپل مقاومت ته ادامه ورکوی په دغسی‌یوه فضا کی به د کابل رژیم سره خبری او موافقه زموږ د خلکو او بیا خپله پاکستان ته د کوم مطمئن مستقبل ارمغان راوړی !!

باور لـرم چی پاکستان د افغان د خلـکو سره خپله

تاریخی وجیبه ادا کړی او د پاکستان خلکو داسلامی ورور-
ولی ارزښت ژوندی وساته او دا چی هغه د کابل د نوکر
رژیم خبرو ته حاضریږی شاید د دلائل ولری چی عمده ئی
د روسانو فشار، داسلامی هیوادونو نیمشواندی ملاتړ، دانقلاب
د حیثیت په نسبت د ایران کمزوري موقف، د پاکستان
د داخلی مخالفینو بد توجیهات دی ولی د افغانستان خلک دا
فکر کوی چی د دغه رژیمونو سره خبری بخپله دا قضیه
د حل په ځای یوی لایحل پړاو ته لیږدوی په هغه
صورت کی چی قضیه په سیء توگه حل نشی، حالات او
مناسبات عادی نشی، دافغانستان ملت خپل حق ترلاسه نکړی
قضیه خپل موجوده ستراتیژی دلاسه ورکړی آیا په هغه
صورت کی به د پاکستان حکومت د روس فشار، د خپلو
مخالفینو بد توجیهات او پروپاگنده کمه کړی وی ! زه
باور لرم چی د اسلامی هیوادونو همدا نمیژواندی ملاتړ به
هم دلاسه ځی او د ایران د اسلامی جمهوریت روان سیاسی
ملاتړ به هم صدمه وینی هلته به بیا د قضی راتلونکی
ابعاد او پړاونه نه یوازی افغانستان بلکی پاکستان او ایران
هم نغاړی خو په هغه صورت کی به زمونږ ملت په خپلو

گاونډیو ورونو د اعتماد فرصت دلاسه ورکړی وی .

د کابل رژیم سره خبری او بیاراتلونکی موافقی او معاهدی هغه جال دی چی پاکستان او ایران به حتی د کب نیونکی کورته رسوی د دغسی رژیم حیثیت به څه وی چی د بهرنیو فوځیانو به حمایه کی شپی تیروی، د ملت نه تجرید او خپل ملت د بیگانه و په لاس وژنی . د دغه رژیم مهم رول خو د خپل ملت سره داوه چی هغه بیگانه قصابانو ته وسپاری . آیا پاکستان به د دی خبرو اترو او راتلونکو موافقو په لړکی یوه ورځ دی مرحلی ته رسیږی چی همدا بیگانه فوځ د همدی رژیم د موافقو او معاهدوله مخی د خیبر دی خواهم را وخوځوی خو هلته به بیا افغان ملت د یو اسیر فوځ په حیث جنگیزیږی ولی د خپل هیوادونه بهر او د دبمن پرځای خپلو دوستانو سره لکه نن چی بخارائی فوځیان خپلو افغانی ورونو سره په جبر او اکراه جنگیږی دلته دا سوال مطرح کیږی چی د کابل رژیم د چانه نمائندگی کوی ؟ د روس نه که د افغان ملت نه ؟ تراوسه خو ژیړ باران د خیبر دی خوا نه دی اوریدلی چی دخلکو لید او نظر دی صدمه لیدلی وی . په رنو سترگو تهوله دنیا

وینی چی ملت د رژیم او د هغه د بیگانه ملاتړ فوځ سره جنگیږی او که د روس مشلان وی نوا روس خپله په دی رژیم باور نلری زکه خوئی خپل فوځ افغانستان ته لیږلی او د روس دغه بی اعتمادی اوس دی درجی ته رسیدلی ده چی حتی پهشئون اسلامی کی هم د هغه متشاران ناست دی او د جنگ او جگړی د قوماندی نه رژیم هغه وخت پوهیږی چی د هغوی د دوستو قواؤ قوماندانان د جگړی تافات د هغوی په اوړو دا یله جارو په شان بارکړی بیا پوهیږی چی جنگ چیرته وه او مړه او زخمیان ئی څو دی ؟

هغه معیار چی د کابل رژیم سره په دی خبروکی مطرح او هغه هدف چی د دی خبرو ترشائی لری هغه به څه وی؟ طبعاً د روس فیصله او د روس مصالح .

زه باور لرم چی نه کوردویز او نه د کارمل نمائنده په هیڅ حل د روسی لویو مستشارانو د پریکړی پرته قدم نشی اخستلای ولی بیاهم دا تپل شوی چی د پاکستان حکومت دی اول مستقیم او که نه غیر مستقیم د کابل د رژیم د نمائنده سره خبری تعقیب کړی !

موږ نه پوهیږو هغه کوم اعتماد او څرنگه اسناد دی

چې دپاکستان حکومت ئې د دغسې یو رژیم سره مبادله کوی
زکه د کابل رژیم اوس د دی ورته دی چې هغه دی چاته
باور ورکړی او یادی د چانه اعتماد واخلی ولی تول هدف
دا دی چې د کابل د بی محتوا او رسوا رژیم سره په دی
رسوا تله کی پاکستان هم و غورځل شی ترڅو د خبرو په
راتلونکی بعد کی روسان د پاکستان د حکومت د توهین او
ځورولو زیات فرصت ترلاسه کړی، زکه د کابل غوندی
د یو بی باوره او بی حیثیته رژیم سره د ناستی پاستی پای به
بل څه وی ؟

ممکن زینو سره داسی فکر وی چې د همدی خبرو او
موافقو په لړکی په افغانستان کی د یو داسی بل رژیم د پاره
لاره هواره شی چې هغه به د روان حالت او د سولی
چتری موجوده احتکاکونو پرغولی کیږدی اوبنائی دائی
د کمونستانو او رژیم د کمزوری موقعیت نه پتیلی وی؛ ولی هغه
رژیم چې دکابل دمبتذلو رجالو موافقه ئی رامنځته کړی په هیڅ صورت
کی نه په روان حالت او نه د موجوده احتکاکولونو پرغولی
چتری کیدای شی زکه په افغانستان کی روان جنجال کوم سیاسی
جنجال نه دی هلته د یو استعمار گرلوی قدرت مصلحت او

او حیثیت او په مقابل کی د یو ملت اراده او حیثیت مطرح دی چی دا کار دکابل حکومت سره د موافقی د لاری دراغلی رژیم د طاقت نه بهرکاردی او ممکنه هم نه ده چی دغسی کمزوری رژیم دی د بیگانه ملت د گتهو او د خپل ملت د ارادی په منځکی د خط او پولی رول ولوبوی. هلته چی جنجال او پرابلم خپل تخریب ته ادامه ورکوی او څوک نشی تضمینولای چی دهند د سمندر پوری؟ اوکه خلیج دپترولو د ځاگانو پوری !

د قضی اصلی جهتونه چی روس او مجاهدین دی په دی خبرو کی برخه نلری او یا قضیه د هغوی ترمینځ نه مطرح کیږی زکه چی په هغه صورت کی خبری هم هاغه جهت نیسی چی روانی جگړی نیولی او ممکن د قضی تسول تیت ارخونه را برسیره شوی وای او د قناعت په صورت کی د دوارو خواؤ قناعت دحل لاره او تضمین دواره برابرول څو دا کار روسان نه منی زکه چی هغوی د خپل ماتی د تسلمیدو او اعتراف شهامت للری څواری زموږ قضیه او تاریخ دواره مغشوش کړی .

## روسان یکی ریښتنی نه دی

تر ټولو مهم شی چی دی خبرو ته دبی ځایه اوبی وخته خبرو جامه ورا غوندی هغه دا ده چی په دی روانو خبرو کی روسان ریښتینی او مخلص نه دی او دا د څو وجوهاتو له مخی :

لمړی دا چی اصلا تـزاری او کمونستی سیاست او رژیمونه د دنیا د ډیرو بد مخو او د وو مخو استعمارگرانـو له جملی څخه دی. هغوی په تاریخی لحاظ هیڅ وخت پخپل تعهد او خبره نـه دی دریدلی د بخارا مسلمانان د همدی د دوه مخو روسانو دژبو او معاهدو قربانی شول. ظاهرشاه او دا ودشاه دواړه د روس د دوستی قربان شول .

روسانو تل د دوستی پـه نامه او عنوان خلک لوټ کړی . د دښمنی په صورت کی خوئی کار او نقشه دوه برابره خطرناکه ده . د خپلو ډیرو نژدی رفیقانو سره هم روسان په خبرو کی ریښتینی نه وی . هغوی که امین په ترکی او بیاامین په ببرک لهمنځه ویوړل وړی امینچی دخپل ژوندپهاخروسلکیو کی هم په روس او روسی بادارانو نازیده. نو د خپلودښمنانو سره د هغوی د ټګی اندازه نه لـبرېږی. د روسانو تاریخ وائی چی روسانو په هیڅ وخت کی پخپلو خبرو کی صادق نه دی

تیر شوی . د منځنی ختیځ معاصر تاریخ یوه ژوندی نمونه ده.
د روسانو یـو وفادار نوکر «سادات» وائی کله چی زه د کریملین
د واکمنانو د یو عالی رتبه شخصیت سره د خپل هیواد په
رابطه غږیـدم نوما ته ئی پوره اعتماد ښوده په دامی حال کی
چی زمونږ ترخنګ کوته کی بل روسی عالی رتبه شخصیت
په ټوله بی شخصیتی زما د سفر د ملګرو سره زمـا د منځه
وړلو پلان طرحه کوی، ان تردی چی روسانـو هیڅ داسی
جنګ نه دی وړی چی هلته د هغوی منافقت او دوه مخی
یکی رول نـه درلود . د همدی ځایــه تاریخ وائی چی روس
هیڅکله دروغی په خبرو کی ریښتینی نه دی پاتی شوی .

په دویمه درجه کی که روسان رښتیا غواړی دافغانستان
قضیه حل کړی نو باید ترټولو د مخه د دی حـل د ملت
سره د تفاهم او روغی جوړی دلاری و غواړی .

که څه هم زمونږ ملت اوس د روس سره یوی اوږدی
جګړی ته ننوتلی خو زمونږ ملت د توری د استعدادترڅنګ
د خبرو استعدادهم لری البته کله چی د خبرو د پاره کومه
مساله موجوده شی .

روسانو سره د دی لاری ډیـری دی ... زمونږ ملت

سره د تفاهم دلاری د دی جنجال نه ځان وباسی که څههم زمونږ ملت د روسانـو سره د بحث ورسساله نلـری کله چی روسان خپل فوځ له افغانستانـ څخه وباسی زمـونږ ملت نور د روسانو سره کومه بله مسأله نلری ولی دا چی دا په غرور او غلطی راغلی فوځ ته د وتلو آبرومندانه لارولټوی دغه لارهم د ملت پـوری اړه لـری ولې موږ پوهیږو چی هغوی روسان دی !

په دریمه درجه کی باید ووایم چی که مسکو پهجدی او ریښتینی توګه دقضی دحل غوښتنهکویولیئی د افغانستان د قضی د حل خبری اتری پاکستان او په کابل کی بی چاره رژیم ته سپارلی ځکه دغسی جهتونه ډیر کرته کیدای شی د قضـی د حـل نـــه عـاجـز شـی قضـیـه یـو منـحرف جهت ته ولیږدوی خو دا د قضی حل نه دی .

په څلورمه درجه کی بایـد وویل شی چی که روسان د حل پلویانـئی نـوولی د خبرو د هر پـړاو سره جوخت د هغوی نظامـی وحشی حملات پیل کـیږی او کلهکله خو د پاکستانـ پـسه خـاوره کی هم د هغوی هوائی تجاوزونه مکرراً تعقیبیږی ؟

په پنځمه درجه کی په دی روانـو خبرو کی د بحث ور موضوعگانی داسی ترتیب شوی چی د روس د پاره ثربی موضوعگانی مخکی له مخکی حل کړی او کیندای شی حل شوی هم ئی ولی هغه موضوعگانی چی د ملت او سیمی د پاره په زړه پوری دی او د قضی اصلی محور تشکیلوی هغه تل وروسته غورحـل شوی لکه د کوردویز د ٨٤کال د خوشبینی ښیښه هلته په زمکه ولویده چی د قضی محوری بند باندی بحث پیل شو .

روسان کوښښ کوی چی د خبرو د موضوعگانو او محتوی عمومیات جدی و نـه نیسی بلکی په دی حدودو کی څه نرمی او تجاوب وښی ولی جزئیات او تفصیلات چی اصلا د قضیی لنگر او محور دی هغه وروسته پریږدی ترڅو په مناسب فرصت کی پاکستان بـه عمومیاتـو کی را ښکار او د جزئیاتـو پـه مرحله کی قضیه د خپلـو گټـو په جهت کی رواله کړی . (باید بوخه نورهم توضیح کړی) .

په شپږمه درجه کی وینو چی روسانو د دی قضی او پرابلم د حل توري لاری جـدی تعقیبوی منتهی پاکستان چ د قضی پـه رابطه تـرتهواو متأثـره خوا ده هغه په دی

د همدې کال په لمړيو مياشتو کې هرمتدين وګړی حتماً يوځل يا څوځله دکودتائی اقتدار چيانو د با ميړالو له خوا تمسخر او توهين شوی دی .

همداسې دکودتا په لمړی کال کې په سلوکی. ۹ کسانه يوځل يا څوځله د دولت په داسې پروګرامونو کې غوښتل شوی او برخه‌ئی اخستی چې هغوی روحاً ورسره موافق نه و او فکرئی کړی چې د نه راتګ معذرت په لاس کی نلری .

د سيمی معزز او پتمند خلک د همدی کال پـه لړکی دکودتائی رژيم د حاکمانو او مسؤلينو له خوا يو يا څوځله هسی پـه هسی او بې له کومی وړی ګناه تهـديد او توهـين شويدی .

په همـدی توګه د رژيم له خوا د انقلاب پـه مختلفو پروګرامونو کې پـه سلوکی تقريباً اتيا کسانـ داسې وګړی استخدام شوی چـی عقدمن او د رژيم د دغی ورسپارل شوی آوالداری پرته‌ئی بل حيثيت نه درلـود او نه د نورو حيثيت ورته مطرح وه .

هغه وګړی چې د رژيم د هوسی او دغوعقدمنوقدرته پالـو له خوا په بند يا په مرګ محکوم شوی د دوه برخوئی

خبرو کی مصروف ساتی ترڅو په سیاسی ډګر کی د قضی د پاره د جدی کارکوالو نه لری وسائل شی .

د پاکستان په داخلی وضعه کی لاسوهنی د ایران سره د نژدیوالی کوښښونه هغه ګامونه دی چی روسانئ د دی قضی د لمنځه وړلو په جهت کی په جدی توګه اخلی ولی دغه جدی پروګرامونه هم په دی خاطر چی د تفصیلاتو په سرحدکښی روسان و کمولای شی د یوه نوی موقعیت نه دریغ ونیسی .

په او مه درجه کی د روسی فوځ زیاتول او د هغه په ذریعه د سیمی د خلکو د لیږدولو پروګرام ټپله ښیء چی روسان یا نه غواړی چی په نژدی موده کی د افغانستان څخه ووځی نو یا خو غواړی چی د خپلو فوځونو د ایستلو نه مخکی هغه هدف ته ځان ورسوی چی فوځئ د هغه د تحقق د پاره رالیږلی دی .

په اتمه درجه کی د کابل د رژیم سره د مخامخ خبرو طرحه او پروګرام چی مخکی ډیر جدی وه ټپله داښی چی روسان دا خبری د څه د پاره غواړی ؟

متم چی اوس مسکودی نتیجی ته رسیدلی نه چی

د کابل مزدور خلقی رژیم په خلکو کی نفوذی قاعده نلری بلکی ملت تجرید کړی هم دی، ان تردی چی روسی مطبوعاتو اعتراف هم وکړ چی «د خلق گوند د کارگراو په سطحه هم ملاتړ نلری»؛ ولی دی اعتراف که هم د مسکو لوتماراانو ته داسی اخلاق جرأت ورنکړ چی د تیرو تیل شویو رژیمو نو په نسبت خپل اعتذار وړاندی کړی یا علی الاقل افغان ملت پریږدی خپل سرنوشت او راتلونکی پخپله اراده وټاکی.

په نهمه درجه کی د بهرنیو مداخلو بیا د افغانستان او روسی امنیتی پولو په رابطه د بین المللی ضمانتونو عنوانول د روس هغه گوری او لجماری شیء چی د قضیی د حل پرځای ئی هدف یوه بل بحرانی حالت ته د قضیی انتقال دی. بنائی د استعمار او تجاوز په تاریخ کی دا نوی خبره وی چی یو مهاجم قوت د حالاتو په رابطه تضمین و غواړی. د څه شیء تضمین؟ تجاوز روس کړی تضمین د نورو له غواړی!؟

**روانی خبری ملت او مجاهدین نه تالید وی؛**

په افغانستان کی روان مقاومت او جنگ د روس او

په مستقیم ډول د لویو قدرتونو د اخ وډب نه را پیدا شوی
وی ولی دا خبره ممکنه ده چی لوی قدرتوله په دی اخ وډب
کی خپلی گټی و غواړی او دا جگړه داسی وښیء چی دهغوی
د رقابت نه د را پیدا مسائلو په لست کی یوه مساله ده ځکه
مقاومت چی د روس پرضد روان دی کوم امریکائی مقاومت
نه دی. په دی مقاومت کی ټول ملت برخه لری او ممکنه نه
ده چی امریکا د دی استعداد پیدا کړی چی ملتونه د ځان
په څنگ کی ودروی بلکی ویلی شم چی امریکائی سیاست اصلاً
د دی استعداد هم نلری چی یوه ملی ډله رهبری کړی .
د امریکا ټول فعالیت او سیاست د افرادو گمرا کول
او د گمراه افرادو دلاری په ملتونو حکومت کول دی
څنگه چی زمونږ مقاومت کی ملت برخه لری دا ممکنه نه ده
چی هغه دی یو بهرنی هیواد پوری تړلی وی . کیدای شی
په دی مقاومت کی داسی افراد او داسی ډلی هم وی چی
هغه د امریکا پوری تړلی وی ولی د همدی ځایه په دهغوی
رول هم په مقاومت او انقلاب کی کمزوری او آفاق وی .

امریکا که دملتونو تر څنگ درولو هنر زده وای نو ویتنام
به ئی گټلی وه . ولی د ویتنام ماتی ثابته کړه چی نورامریکائی

پالیسی یوه ناکامه پالیسی ده . کیدای شي پـه دنیا کې ډیر رژیمونه د امریکا پوري تړلی وي خو هغه رژیمونه یا خو په ملت کې بیخ نلري او یا خو د روس دویري نه‌پری‌امریکائی رژیم تحمیل‌شویدی‌ولی دامی ممکنه نده چې ملتونه د دغسی یو رژیم حمایه او دوستی انتخاب کـړي . دا ممکنه ده چې کله کله روسان په درواغـو ملتونـه و غولوی او د ځان ترخنګ ودروی خو د لنډی مودی د پاره ! او کله چې‌ئی مخ رسوا شي هلته بیا د روس تحمیلی رژیمونه د امریکائی‌رژیمونو په نسبت زیات ظالم او احمق وي .

پـه دی صورت کې چې دا مقـاومت د ملت پـوري اړه لري د هغه راتلونکی به حتما د هغه د ارادی‌اوپریکړی پوري اړه پیدا کوی او هرهغه‌څه چې په دی ملت د خپلی ارادی پرته تحمیلیږی د هغه نتیجه او پای بـه هم د همدی کودتائی رژیمونو په څیروی چې بالاخره‌به د روسی فوځیانو حمائی ته لاس او سرورانـدی کوی .

په روانو خبرو کې به حتماً دا خبره جدی مطرح وي چې جګړه او جنګ ودرول شي ولی چې د جنګ او جګړی عوامل لیری‌نشی ممکنه نه ده چې د جنګ د درواو په‌رابطه

هیڅ طرحه مفیده وی. کیدای شي زیني داسې طرحې هم وی چې جنګ په افغانستان کې متوقف کړی خو دغه طرحې به بیا د روس تجاوز او پرمختګ توقف نشي کړای .

په روانو خبرو کې د ملت تائید او موافقه او دهرڅه نه مخکې د هغه حیثیت مطرح دی د همدی ځایه دا خبری بې ځایه ښکاری ځکه زمونږ ملت په دې خاطر وسلې ته لاس نه دی کړی او نه ئې په دی لاره کې یو ملیون شهیدان ورکړی چې مستړیلان دی د ځو جلالتمابانو په خوښه هغوی ته دراتلونکی فیصله وکړی. د ملت د ارادی پرته نه روس او نه بل جهت کولای شي د قضی د پاره سنجیده او مفید حل را وباسی ځکه اوس شخړه او مسوله دواړه د ملت د ارادې پورې تړلی کار دی .

ممکن ځنې داسې تصور وکړی چې هغوی کولای شي د بې چاره او مجبورو مهاجرینو رأیه او تائیدپه‌هروخت او د هرې طرحې او فیصلی د پاره واخلی ځکه هغوی فکر کوی د مهاجر بده ورځ د هغوی په ګټه ده، ولی دا باید و منيچې دغسې‌تائید او رأیه کټ مټ همدغه مجبوریت ته ورته ده چې په خوراکی مهاجر تېل شویدی .

منم چی د سیء حل په صورت کی معقوله نه ده چی څوک د دی دربدره ملت مصیبت نورهم اوږد کړی ولی دا هم پرځای نه ده چی د دی دربدره ملت درأیی او تائید پرته څوک د هغه د مستقبل په نسبت تصمیم‌ونیسی .

بناء ځینی دا ووائی چی په ملت کی موجود نفاق او اختلاف د ملت د رأی او تائید مخه نیسولی خو مونږ وایو چی مدا تاسی وی چی ټهله مو د دی نفاق او اختلاف تخم وشنده ترڅو د خپلو مصالحو په خاطر د اختلاف او نفاق قلمه د ملت په مخ راوکاږی .

نن د افغانستان یو عادی مهاجر او یو عادی مجاهد په دی پوهیږی چی هغه ولی خپل وطن پری ایښی او هغه ولی وسلی ته لاس کړی؟ نن د هغه پیام ډیرواضح اوڅرگند دی ، ولی بیاهم چی زمونږ د ملت دغه پیام د نورو دخبرو قربانی شی نتیجه بهٔ ئی څه وی ؟ طبعاً د یو بشپړ ملت په مخاطره کی غورځول .

سیء ده چی زمونږ ملت نن یوی گنولی سری ته محتاج دی ولی دا سیء نده چی دهمدی احتیاج دزاوی هغه ته د همدی احتیاج به حدودوکی حق ورکړل‌شی هغه نن

د روس سره جنګیږی او روسانی هم په ځان حیران کړی هغه ته په همدی حدودو کی حق ور کول په‌کار دی او هغه ته باید د همدی زاوی و کتل شی .

سیده ده چی زموږ ملت په دی دربدره ورځکی ښائی د دوستو هیوادو د یو عادی پولیس په تروه تندره خپل‌وران هیواد ته ستانه شی خو دا هیڅ کله د کمزوری معنا نه ور کوی بلکی دا د دی معنا ور کوی چی زموږ ملت نه غواړی د نورو د اوږو بار او د نورو مزاحم شی . ولی داهم باید ومنو چی د دوستو هیوادو د پولیس په ځواب کی ستون شوی مهاجر دمره تیت همته ندی چی هغه روس ته سلای شی . کیدای شی روانه جګړه بل رنګ واخلی‌هلته د روس د ارادی او پلان ترڅنګ د دوستانو پلانونه هم بابیزه او بی فائدی شی، ځکه ملتونه لکه څنګه چی زر او چټیږی نه همداسی زر تسلیمیږی هم نه : څنګه ممکنه ده چی هغه دی د ترکی ، امین ، ببرک تحمیل شوی رژیمونه و نه منی او بیا دی د نورو ارادی ته په موجوده قوت تسلیم شی .

د افغانستان خلک د روس پرضد دریدلی او څوک چی

د روس د ارادی او د هغه د مزدور رژیم د تیلو په جهت کی هغه کوی کمه له کمه دی داهم وانگیری چی که افغان ملت د دغی مانور په ورانـدی ثابت هم پاتی نشی مانور به هم د افغانستان په پولو کی د ننه نه پاتی کیږی. دا کیدای شی چی د ملت د تائید پرته هم خبری جریان پیدا کړی اوی‍ــوی معینی نتیجی او فیصلی تـه هم ورسیږی ولی هیڅ با وجدانه انسان به د دغـی پریکړو په نسبت دا قضاوت ونکړی چی هغه په ځای او منصفانه دی .

د ملت په غیاب کی د هغه د راتلونکی په باب پریکړه اصلاً هغه راتلونکی د سړی پـه نظر کی راولی چـی د پرون سرهٔی پوازی همدمره توپیروی چی د سبا په امیدڼی اسارت ته انتظار غنیمت گڼلی وی .

څنگه چی په دی خبرو کی د ملت نمائندگان حضور نلری او د ملت د تائـید نه بی بـرخی دی ویلی شـو چـی راتلونکی به داسی وی چی زمـوني ملت بـه نور په خپلو دوستانو ډیر اعتماد ونکړی ان تردی چی بنائی د ملت دخوا یدی جهت نور هم بدل شی .

# ملت د خبرو په جریان کی واقع نه دی

څلورمه کمزوری نقطه چی په روانو خبرو کی لیدل کیږی هغه داده چی ملت د دی خبرو په جریان کی نه واقع کیږی. روانی خبری د قضی د غیر اصلی جهتونو په منځکی کیږی دا چی ولی خلک د قضیی د سیاسی حل د مراحلونه نه خبریږی البته چی په دی کی ډیر مصلحتونه دی خو د بده مرغه چی زمونږ د ملت مصلحت نه؛ د غیر اصلی جهتونو!

تر ټولو لوی مصلحت دادی چی د غیر اصلی جهتونو د مصلحت په حدودو کی قضیه د حل لار پیدا کړی ترڅو ملت د خپلی بی خبری په نتیجه کی په مناسب پړاؤ کی مزاحمت خلق نکړی او د پریکړی وروسته د هغه مزاحمت او انکار بی وخته کار وی.

ښائی د روانو خبرو 20% پــه سلوکی هم مسؤولـو جهتونو تــه یا د قضیی په ارتباط کی واقع وګړو ته نـه‌ئی شوی او دغو ارتباطی وګړو هم خپـل دغه 20 پـه سلوکی محدود او بی ربطه معلومات نـور ملت ته 3% په سلوکی نـه وی وړاندی کړی البته چی دلته به دویمه درجه مصلحتونه قـرار لری خو بیـا هم د بده مرغـه زموږ د ملت مصلحت پکی نه لیدل کیږی .

د همدی ځایه چی خبری پټی روانی دی نو ویلی شو چی په خبرو کی حتماً کمزوری شته ځکه چی د پښتو متل دی چی غل نه وی د پاچا نه هم مه ویریږه .

دلته برسیره په دی چی د ملت او خلـکو د تائید او ملاتړ نه سترګی پټول کیږی ملت د خپـل سرنوشت په باب هم نه خبریږی چی د هغه په باب نور څه تصمیم نیسی .

دا لیری نه ده بلکی عملی هم ده چی د خلکو نه دغه پټی روانی خبری پـه یو پړاو کی داسی فضاء را منځته کـړی چی بخپله د خبرو غیر اصلی جهتونه د تطبیق په مشکل کی وغورځوی او یا د دغی اشتباه د اخستلو د پاره ډیری قربانی ورکړی ولی هرڅوک ان د سیاست د دنیـا خلک هم خپـل

تحقیق او غورنه دی شوی او د رژیم سره د هغوی د بند او مرګ موجه اسناد نشته د همدی ځایه خو یوځل حفیظ الله امین او بل ځل ببرک د وژل شویو وګړو پړه پخپلو سرو ملګرو واچوله ترڅو د ملت د مظلومو قربانیانو د وینی د پورنه ځان خلاص کړی .

هغه وګړی چی د رژیم د دغسی جفت او تاق په اساس شویو پریکړو نه سر په سلامتی ایستلی د هغوی په سلوکی دیرشو کسانو حتما یوځل او یا څوځله دا ویره او دا بیم د ځان سره ساتلی چی نن او یا سبا به ئی د رژیم جلادان په بند یا په مرګ سپاری .

د «مرګ او بند» رژیم په ملت کی د ویری او وحشت تبه دی درجی ته رسولی وه چی حتی هغه کورنی چی یو یا دوه کسه ئی په رژیم کی فکری کمونیستان هم درلودل د دی ویری پیڅول پری نسکور وه . په پوره باور ویلی شم چی د دغی کورنیو درش په سلوکی داسی وی چی هلته پلار او یا ورور د دی ویره ساتله چی د خپلو کمونستو ځامنو او ورنو له خوا به یوه ورځ د پل چرخی د مرګ کندی ته تحویل کیږی .

نن ژاړی ! سیء ده چی په دی توره او سپیره ورځ کی به ملت دا امکان او فرصت نشی ترلاسه کولای چی د دی پټو خبرو په وړاندی خپل رأیه ښکاره او نورجهتونه ئحپل حدکی ودروی ! ولی د پریکړو او طرحو د تطبیق په لړکی خو به هغه پوه شي چی هغه دکوم نظام چړو ته سپارل کیږی ؟ او هلته به د خپـل تقدیر پـه هکله خپله خپـل تدبیر نیسی خو هلته به یا ملت د یو بل اسارت په جال کی لویدلی وی یا به د یو بل مرګ لمن تـه لاس اچـوی خو دا پټی خبری بـه حتماً یا د اسارت یا د انتحار بد انجام د ځانه سره لری .

## خطرناکی خـبری

دا ښکاره ده چی روانی خبری بی وخته او بی ځایه دی او د ګونګسی نه‌ئی د آزاد افغانستان غږ څوک نشی اوریدلی او نـــه به څوک د دغسی لیدنـو او کتنو په نتیجه کی هغه سرمنزل ته ورسیږی چی زمونږ د هیواد یو میلون با شهامته بچیانوئی په لارکی سر کیښود ولی د دی نه خوا بدونکی داده چی دغه لیدنی اوکتنی چی د مجاهد ملت په غیاب کی سرته رسیږی په کی زمونږ د ملت او تاریخ د پاره په لسهاؤ نـور خطرونه نغاړی او د دی خبری دلائل هم څرګند دی .

په ظاهری لحاظ خو دا په زره پوری ده چی روسان افغانستان پریږدی . آواره او ځوریدلی مهاجرین به خپل کور او کلی ته آرام ستانه شی . ولی باور لرم چی د قضیی اصلی محور او جهت بل څه دی . د روسانو موجودیت یا د مهاجرینو بی وطنی دا هغه آفتونه دی چی د قضیی او مقاومت په یو معین پړاو کی را منځته شویدی، د قضیی مهم عنصرنه تشکیلوی، ځکه په افغانستان کی هغه وخت د فتنی اور ولږیدله چی په ملت باندی د پردو اراده او کاچر په زور او تشدد وتپل شول په هغه وخت کی نه د مهاجرینو مسألی دغسی حاد حالت درلود او نه هم په افغانستان کی روسی پوځ موجود وه خو زه نه پوهیږم چی دغه جهتونه زمونږ د ملت او قضیی دغه ترخه ماضی او مصیبت لرلی سابقه څنګه هیروی او ولی‌ئی د نظر نه لری غورځوی ؟ البته په دی خاطر چی چی فکر کوی روسی پوځ په افغانستان کی سیمی ته خطر پیښ کړی یا خو د مهاجرینو دی لوړ شمیر د سیمی د پاره مشکلات را پیدا کړی منم دا دواړه خبری په ځای او په معین چوکات کی د توجه وړدی ولی دا نه ښائی چی د روسی

پوځ د وتلو په هوس او د مهاجرینو د بیرته تللو په تکل د قضیې محوری عنصر چې د ملت د ارادې او کلچر ، په افغانستان کې د اسلامی نظام تحکیم دی، د یاده وباسوز که د دې پرته مونږ د روس او د هغوی د نوکرانو سره بله د اختلاف مسأله نلرو . دا د یوی خوا د بلې خوا د خبرو جریان په راغلی جهت کې، نه د مهاجرینو د پتمن تګ اونه د روسانو د ریښتنی وتلو شواهد د ځان سره لری بلکی همدا خبری د ځان سره سل لور خطرونه لری چې هر یوئ زمونږ د ملت آزادی تهدید وی او د بیګانه ؤ د هجوم او بقاء تضمینوی چې مونږ په لاندې ډول هغه ملت او دنیا ته وړاندی کوو :

۱- دغه خبری د هدف له مخی .
۲- د محتوی له مخی
۳- د خبرو د دواړو جهتونو له مخی
٤- د نتیجې او فیصلې له مخی
٥- د روسانو د بدی سابقی له مخی

## د هدف له مخی

لکه مخکی چې مو وویل دا سې څه نشته چې په دی

خبرو کی روسان ریښتینی او صادق وبښیء او هیڅوک هم دا فکرنشی کولای چی روسان د دی خبرو په لړکی غواړی د افغانستان د قضیی عادلانه حل ته چمتو شی . کیدای شی د خبرو په سر او لړکی د هغوی لهجه نرمه او کله یو څو محدودو تنازلونو ته تن ورکړی ولی کیدای شی همدا نرمه لهجه او همدا محدود تنازلونه د مخالف لوری د پاره شیطانی دام او د مهاجرینو د پاره د یو بل جنجالی پړاو د پیدا کیدو طرحه وی د همدی ځایه په دی خبرو کی او د خبرو په روان سیستم او طرزکی ډیری خطری شته چی موبږئی په لاندی ډول وړاندی کوو :

۱- د مجاهدینو غافل کول .

۲- د ملت او مجاهدینو ترمنځ سوء تفاهم پیدا کول .

۳- د پاکستان او مجاهدینو ترمنځ خوا بدی راوستول .

٤- ټخپله د مجاهدینوترمنځ اخ وډب ایجادول یا (پیل کول).

٥- په حرج سوقت کی د پاکستان غورځول .

٦- په روسی ضد حساستونو کی کموالی راوستول .

۷- د افغانستان د حالاتونه د خلکو پام په بله کول .

۸- د یو بل روسی مشر به رژیم د پاره لار هوارول .

۹. د اسلامي جهاد د واقعي دوستانه مايوس کول .
۱۰. او بالاخره په سيمه کې د روس د اوږدې طرحو د تطبيق لپاره لار هوارول .

د مجاهدينو اغفال :

مخامخ جگړې د ملت ټول طبقې او ملتونه د روس په ضد سره متحد او منسجم کړل اوس د ملت دغه وحدت او صف نيونه د روسې د پاره ترټولو لوی تهديد گڼل کيږي . همدا د ملت بيداري او د مجاهدينو جدي مقابله ده چې روسي پوځ د پارهٔ سترې خطرې را مخکې کړيدي . د همدې شايه کيدای شي روان خبرې په همدې هدف د يوی اوږدې مرحلې پورې تعقيب شي ترڅو د خبرو اترو د لارې د قضيې سوله ايز حل ته مجاهدين او ملت متوجه او د جدي مقابلې نه د هغوی پام په بله او په کرار کرار شرائط داسې تعبيه شي چې د اغفال شويو مجاهدينو بايللې حرارت په ملت کې مقاومت کمزوري او د آدامې او تداوم نهٔ ملت راستون کړي .

م د هجرت په سختو شرائطو کې ژوند ، په داخل کې خلکو د کور او د کلي ورانونې کيدای شي د روس دغه

پلان ته زمینه جوړه کړي او د خبرو په زړه پوري پړاؤ کې د ملت رابطه د جهاد سره وشلوي او په یو بل حاد پړاؤ کې روسان د خبرو شا ته سنجولی پلان عملی کړي .

د ملت اغفال بخېله د روسانو د پاره د خبرو اترو په راتلونکو پړاؤنو کې د مناسب اقدام زمینه برابروي هغه هم په داسې حال کې چې روسي متجاوزین د ملت په وړاندې هیڅ ډول تعهد او شرائط نلري ځکه په روانو لیدنو کتنو کې ئې د ملت حضور په پوره هوښیاري او د نورو جهتونو په همکاري د بي بي سي راډيو په څېر کې مصروف کړي دي .

کله چې د کړو تعهدونو یو قسمت عملي او د هغه په نتیجه کې ملت ته د دې باور ور کړي چې روس نور افغانستان پریږدي هلته د جهاد په سنګرونو کې د دې منتظر ولاړ مات خطر له منځه ځي د همدې ځایه مونږ وینو چې د خبرو په پیل کې هم او اوس هم ځینې راحت طلبه وګړي او هغه چې اصلا د مقاومت سره څه ارتباط نلري ځان او ملګري د «جنیوا» خبرو ته زيات امیدواره کوي ، په پوره جبن دې توقع ته رنګ ورکوي چې ګوندي په آسانه یو وار بیا هماغه د خپلو چرچو لپاره وطن ته ولاړ شي !

اصل خبره همدا ده چی ممکن روسان د دی خبرونه دا هدف ولری چی ملت او مجاهدین افغانستان ته د بیرته آمانه تگ خوا تـه تشویق او په کرار کـرار په هغوی کی د جهاد او مقاومت جذبه ختمه کړی .

که څه هم ملت اوس یوی تاریخی ، ویښی مرحلی ته رسیدلی او ممکنه نده چی په آسانی ځوک هغه د دی سنگرونو نه را بهر کړی ولی دا یوازی روس نـه دی چی د ملت پـه اغفال کی طرحه لری ، کیدای شی ځینی نور دوست جهتونه هم نظر خپلـو مصلحتونو ته د اغفال پـه دی پروگـرام کی د روسی سره شریک شی او بیا دا چی په ملت کی هم سست او بی باوره عناصر پیـدا کیږی هغـوی ځپلوار د دی اغفال او غولونو په جهت کی د خدائی خدمتگرو رول لوبوی .

داسیء ده چی اوس مجاهدین د خپلو داخلی ټولـو مشکلاتو سره سره د جنگ او جگړی پخه تجربــه لری ولی دا هم په ځای ده چی پـه سیاسی ډگر کی زمونږ د ملت او مجاهدینو تجربـه کمزوری ده او د همدی کمزوری تجربی له امله خو دغرضی عناصرو په دی ملت باندی اختلاف او ځو حبتی تحمیل کړینه او هعه نه پریږدی چی د وحدت د قوی

سنگر نه د دښمن په ضد خپل موجودیت وښيء نوکیدای شي دغه سیاسي کمزوري تجربه او د رایت د ملت فکر د روانو خبرو مهموټکو ته چي د مهاجرینو بیرته تګ او د روسانو وتل دي را واړوي ولې زتولو مهمه نقطه چي د ملت اراده او د هغوی خوښه د یو اسلامي نظام تحکیم دي دا د یاده وباسي لکه څنګه چي د بلی خوا ممکن په همدی محدوده کی دا هم د یاده وباسي چي روسان د همدی خبرو او تعهدونو په لړکي متاوت پای ته ورسوي او د دویم خپل د پاره په هره مناسبه مقطع کی ځانته یو پلمه پیدا او خپل پاتی پروګرام بی جنجاله تطبیق کړی که څه هم د دغسی یو پروګرام او د دغسی اغفال طرحه دومره عملی نه ښکاری خو بیا هم روسان د خپلو ټولو غلطیو سره سره خپل پلانونه د سروی او مطالعی وروسته تطبیقوی او ممکن چي یو وار بیا روسان د خپلی سروی او مطالعی په نتیجه کی د خبرو او مذاکراتو انتخاب کړی لار پریږدی منم چي په جهاد او مبارزه کی ولاړ ملتونه په آسانی نشي دوکه کیدای خو دا هم باید ومنو چي بین‌المللی توطئو هم ډیرو مبارزو ملتونو ته د اسارت بار په اوږه ورکړی .

د جهاد او مبارزی جذبـه په سنګر کی د حضور او
د سنګر څخه د راغلو خبرو په نتیجه کی ژوندی پاتی کیږی
خو کله چی یو ملت د جهاد د خبرونو په ځای د سیاست
او سازشونو د رواغجنو خبرو خوا ته غوږ شی نو په
هغه صورت کی خلک د سنګر او جهاد نه فاصله نیسی او
د قضیی په باب د آسانـه حل د لټولو ذهنیت اخلی مګر
د آزادی نعمت هیڅکله څوک په آسانه نشی موندلی .

**د ملت او مجاهدینو ترمنځ سوء تفاهم :**

که څه هم د جهاد د پیله تر اوسه پنائی د سلهاؤ
دسیسو تخم د روسانو او د هغوی د نوکرانو له خوا په ملت
کی د نفاق او څو جهتی په غرض کرل شوی ئی او دا هم
مبالغه نده چی په افغانستان کی د روسانو د مصرف شوی
دارائی یو ثلث هم د ملت په داخلی نفاق او ګډوډی کی
مصرف شویدی د افغانستان په داخل او بهرکی چی د جهاد
په رابطه ځینی خواشینونکی کمزوری او خالیګاری لیدل کیږی
زیاتی ئی د کا - ژی - بی او خاد د مستقیمو او غیر مستقیمو
فعالیتونو محصول دی .

د افغانستان په داخل کی داسی په وار وار لیدل

شویده چې روسي مستشارانو د احزابو قوماندانانوته د سولې او تفاهم پیشنهادونه کړي او هغه فقط په دې خاطر چې د نوموړي قوماندان جهادي جذبه کمزوري او د جهاد نور قوماندانان د هغه په ضد راوپاروي خو دغه پیشنهادونه د قوماندانانو له خوا رد شویدي که څه هم شاید ډیر کمو قوماندانانو هغه د موقتي مودې د پاره منلي وي خو هغوی بخپله د روسانو د دغه طرحې بد عواقب پخپله د جبهې په داخل کې لیدلي دي .

کله کله داسې هم شویدي چې د دولت پوري مربوطې پوستې د مجاهدینو سره تماس نیولي او هغوی ته ئې د خپلو تسلیمیدونه اطمئنان ورکړي منتهی په دې شرط چې د خپل ترخنګ بله جبهه ورته کوي ترخو اطمئناني تسلیم شي او کله کله خو بیا داسې هم شویدي چې په یو وخت کې ئې ددوو جبهو سره تماس نیولي او په یو وخت ئې دواړو ته د خپلو تسلیمیدو خبر ورکړي چې په دې توګه د پوستې د تسلیم مخکې مخکې دوه جبهې سره په جنګ اخته شوي او بیائې چې دغسې جنګونو ګټونه او میاشتې هم ادامه پیدا کړیوي .

د جنیوا رواني خبرې کومه فوق العادګي نلري هغه په

په دغسی کورنیو کی چی یو یا دوه غړی ئی د رژیم زړه بایللی ، بی پامه پاسدران هم وه ډیر کرته داسی شوی چی هغوی خپل ورور یا پلار د تهدید او توهین وروسته بندیخانی ته هم لیږلی وی .

د ترکی رژیم په لمړیو میاشتو کی د ماموړینو، محصلینو او صاحب منصبانو په سطحه ، لمونځ ، ګیره پریښودل یاد رژیم د رسمی پروګرامونو نه بیرته پاتیکیدل د انګریزانو سره د ارتباط لوی دلیل ګڼل کیده .

په همدغه فضا کی چی رژیم په بدګمانی او اتهاماتو کی ځوښیده په سلهاؤ محلی تربګنیو او قومی مخالفتونو سیاسی رنګ پیدا کړی چالاک او د دولت سره آشنا وګړو خپل قومی مخالفین د رژیم په پولیسو تکول او د رژیم وحشت او استبداد د قومی مسائلو د پاره د اخ وډب ارکاره وه ان تردی چی رژیم په ټوله بی رحمی د خپل د تائید په خاطر خپله د قومی تربګنیو کمزوری او بی حیا جهت ته پناه وړله . د راغلی رژیم ترخنګ دریدلو عادی نه عادی انسان ته د دی فرصت ورکوه چی لاس په لسهاؤ جرمونو پوری کړی او خپل ټول جرمونه د دولت په تائید کی پټ کړی

داخل کی د سولی او تفاهم د پیشنهادونو یوه پرمختللی کاپی ده ترڅو د دی خبرو په نتیجه‌کی د شویو کمزورو موافقو او پریکړو په نسبت په ملت کی څو جهتی را منځته کړی او مجاهدین پخپل منځکی مصروف کړی څنګه چی په داخل کی د هغوی دغه وړ دسیسی په محلی سطحه وی تأثیری دومره کلی او مهم نه وه ولی کله چی دا خبری د افغانستان په سطحه‌شی او دخبروخواوی هم بهرته رسیدلی‌وی کیدای شی د دغسی طرحی او پلان تأثیر اوعواقب هم زیات خطرناك وی زکه موجوده نفاق او اختلافات فقط د مقاومت د تداوم او په هغه کی د مؤثری برخی په شاوخوا کی روان دی خو کله چی افغانستان ته د ستنیدو او بیا هلته د یو رژیم د منلو یا راوستلو طرحه وی هغه هم د ملت په منځکی نه د بهرنیو جهتونو په منځکی حتمی ده چی دغسی فضا او پریکړی دځان سره ډیر سوء تفاهمونه راوړی او په دغسی تیاره فضاء کی د تکرونو احتمال ډیر وی .

سسیء ده چی د خبرو رسمی جهتونه به پخپل منځکی د افغانستان موجوده وضعه او د هغی بدلول د یوی حساب شوی طرحی په رڼا کی تربحث لاندی نیسی او په دی رابطه

به علی الاقل د شکلیاتو په سطحه څه ناڅه قانع کوونکی پریکړی ته رسیږی ولی کله چی د قضیی اصلی جهت په جریان کی نوی او د هغه اراده او فکر بخپله راتلونکی کی د خپله نه وی حتماً به د تصمیم په مرکزونکی داسی څوک پیدا کیږی چی د نورو له خوا د تحمیل شوی پریکړی په ضد خپله رأیه او موقف څرګند کړی چی دا خپله کمزوری او بی جهته خوا وی د قضیی په رابطه د اخستل شوی قدم منلو او د نورو له خوا د ایښودل شوی خولی په ارتباط یوی تودی شخړی ته راکاږی ؟

سسیء ده چی اوس هم د قضیی او هیواد د راتلونکی په نسبت په ملت کی مختلف نظرونه شته او په دی رابطه د مجاهدینو په منځکی ډیری غلط فهمی وجود لری خو دغه غلط فهمی په هیڅ صورت کی دی مرحلی ته نشی رسیدلی چی زمونږ د هیواد دغه تاریخی قضیه او مقاومت شنډ کړی، ولی په هغه صورت کی چی د قضیی په رابطه نور تصمیم نیسی، فیصلی ته رسیږی او په عین وخت کی هیڅ سره د تعهد په حدودو کی د متجاوز جهت د درونو استعداد هم نوی کیدای شی موجوده یا د خبرو او فیصلونه را پیدا شوی

غلط فهمی او خالیګاوی داسی حادی مرحلی ته ورسیږی چی ملت ټپل منځکی مصروف او روس د همدی فرصت نه ګټه پورته کړی او د مقاومت ادامه زنداني یا متوقفه کړی .

روسان د دغسی یو روس ماتونکی مقاومت او د دغسی مسکو شرموونکی قضیی په رابطه بعیده نه ده چی همداسی یو پروګرام په مخکی کړی ځکه روسانو ته د کمزورو هیوادو په رژیمونو لوبی کول او د هغوی سره د موافقی د لاری سلطنه اسارت ته راکښل یوه عادی خبره ده .

ممکن روسان په دی هڅه کی وی چی د خبرو په لړکی یا د ټی موافقو د جزئیاتو تطبیق ، ته د ننوتلو په وخت کی خپل مخالفین په یوه لویه غلط فهمی کی وغورځوی او د مجاهدینو د مصروفیدلو په فرصت کی په مقاومت او قضیه باندی خپل نهائی ګذار ترسره کړی .

د دی پرسیره روسانو مخکی له مخکی د روانو خبرو طرحه او جهتونه داسی انتخاب کړی چی هغه به په طبیعی ډول د اختلاف او ګډوډی د پاره زمینه جوړوی ځکه روسان د مجاهدینو د داخلی جهتونو او د هغوی د غوښتنو په نسبت کافی مطالعه او معلومات لری او د همدی ځایه ممکن هغوی

کمزورو ډلو ته د راتګ او د هغوی غوښتنو ته په موقت ډول نو ګه مثبت ځواب ووائی ترڅو د هجرت د سختو شرائطو له کبله ملت او مهاجرین په جبری توګه د خپلی طرحی او هغو ډلو پسی راکاږی چی هغه هر وخت او په هرځای کی د روس په دام کی لویدلی شی او د بلی خوا همدا ډلی په همدی موقته مرحله کی په سیاسی او ملی لحاظ د روس د مخالفو قوی ډلو په ضد وپاروی .

که څه هم ښائی په موجوده ډلو کی هیڅ یوه هم د روس د دغسی پلان قربانی نشی او ښائی هیڅوک هم داسی لویدلی کار ته تن ورنکړی ولی بیاهم سابقه او موجود سوء تفاهمات او په جهاد کی د غرضی عناصرو موجودیت کیدای شی په هره مرحله کی د داسی یو موقف او اقدام د پاره لار هواره کړی او باید چی ملت د دغسی پلان د بدو عواقبو او د کمزورو ډلو سقوط او لویدلو ته ښه متوجه وی. لکه د بلی خوا چی همدی ډلوته په کار ده چی د مسکو په دغه جال کی ونه لویږی . کابل ته د آسانه او ژرتګه هوس هغوی د دویم ځل د پاره دی ته اړنه باسی چی مجاهد افغانستان بخپله روس ته تسلیم کړی لکه پرونۍ چی

په سوله کې ویده افغانستان د خپلو بدو کړو او غیر مسؤلانه سیاست له مخې د روس نوکرانو ته وسپاره .

هرهغه جهت چې په لا شعوری او عاطفي توګه دروانو خبرو او راتلونکو پریکړو سره بې استدلاله سربنوروی او فکر کوی چې د مسکو نغنده «هو» او د شاوخوا دوستانو «مخه ښه» به د هغوی لاره کابل ته لنډه کړی او په دی رابطه ملت او د هغه د راتلونکي په هکله مسؤلانه دریځ د یاده وباسي هغوی دی پوه شی چې کابل ته تګ به هغوی ته د موجوده کابل رنګ ورکړی خو په هغه صورت کې به یا ملت د هغوی په ضد همدا نني رنګ ساتی او یا به ئې د ځان سره د افغانستان د اسارت قواله هم وړیوی .

## د پاکستان او مجاهدینو په منځکې غلط فهمي :

په دی رابطه د افغانستان ملت سره پوره باور شته چې د روس د تجاوز او د هغه د تپل شویو رژیمولو پرضد د افغانستان د خلکو په برحقه مبارزه او جهاد کې د پاکستان حکومت ! اوخلکو زمونږ د ملت سره نه هیریدونکي خواخوږی او ورورولی ترسره کړی او د کومه ځایه چې د روسانو تجاوز او پرمختګ دغه دواړه ملتونه تهدیدوی حتمی ده چې د تجاوز

د هرپلان په وړاندې به همدا وروړولی او پیوستون باقي پاتي وي .

یوه لویه مسأله چي د روسیې د پاره په اشغال کړی افغانستان کې پیښه شوه اولا ادامه لری هغه د روس پرضد د پاکستان او افغانستان د خلکو ګډ موقف دی چي د پاکستان حکومت د همدی قوی باور په نتیجه کې زمونږ د هیواد مهاجرینو د پاره د دمی ځای تهیه کوی .

سیء ده چي په افغانستان کې روان جهاد یوازی زمونږ ملت پیل کړی او تراوسه هغه یوازی د جګړی په میدان کې ولاړ دی ولی د پاکستان د خلکو سیاسی ملاتړ او اسلامی خواخوږی بنائی د دی مقاومت او قضیی د مهمو مساعدو عناصرو څخه وګڼلی شو او د روس د پاره په دی مقاومت کې ترټولو سخته غوټه چيتراوسهٔی خلاصه نشوای کړه همدا د پاکستانی ملت او حکومت ملاتړدی که څه هم پاکستان په دی لاره کې ډیر تهدیدونه ومنل او ترټولو وروستی او مهم ګواښ هماغه د «چرننکو» په مرګ کې د ګورباچوف تهدید وه چي د پاکستان جمهور رئیس ضیاء الحق ته متوجه شو ولی ضیاء الحق هم پهلوار د دی دوه ملتونو د تاریخی

او دیی پیوندونو په رابطه د خپلی همکاری او ملاتړ دغو کولو نه ځان عاجز وګانه لکه څنګه چی پاکستان د مقاومت په دی دریو وروستیو کلنو کی د کابل رژیم په ملهاؤ نظامی‌تیری زغملی خو د دی ټولو سره سره د پاکستان د ملت او مجاهدینو ترمنځ د دی او بدلی ورورولی او کلکی غوټی په رابطه د روسی هلی‌ځلی په هیڅ وخت کی نه دی دریدلی څه هغه د پاکستان حکومت پرضد د خپلو مخالفینو د لمسونو د لاری وه او څه هغه د مهاجرینو او پاکستانی ورور ملت په منځکی د حوادثو د را پیدا کولو ، دا ټول و کارول شول ترڅو دغه ملاتړ متزلزل کړی خو دا دسیسی یوه هم موثره تمامه نشوه ولی د سیاسی حل د خبرو روان جریان او سیستم چی هلته د مجاهدینو د تمثیل دپاره یکی ځای نشته او مجاهدین هم د یو مرموز او پلانیزه شوی حل نه کر که کوی داسی نه چی دا خبری او یا د خبرو راتلونکی پړاوکی داسی شرائط را منځته کړی چی د قضیی‌نه د پاکستان د حکومت او مجاهدینو ګډ ملاتړ ته صدمه ورسوی او په نتیجه کی ئی د دواړو جهتونو ترمنځ سوء تفاهم پیدا شی زکه دا ډیره ممکنه ښکاری چی د قضیی حل داسی طرحه شی چی

په عاجله توګه د پاکستان د حدودو امنیت وبښئ، د پاکستان د پاره د منلو وړوی ولی په عین حال کی دا هم امکان لری چی په نوسوړی حل کی د جهاد د پیل او ادامی مهم تکی دیاده ایستل شوی وی او په دی توګه د مجاهدینو د پارهٔ منل ستوغ شی خاصة چی روسان د دی هڅه کوی مجاهدین تقسیم او د خپلی قضیی په رابطهٔ یوازی کړی .

واقعاً د پاکستان او مجاهدینو ترمنځ د قضیی د حل په رابطه سوء تفاهم زیات مضر ښکاری ځکه روسان غواړی دغسی سوء تفاهم را پیدا او هغه ته وده ورکړی ولی روانی خبری او بیا په موجوده سیستم ، زیات امکان لری د روسانو د دغسی پلان د پاره لار هواره کړی او د دیکار عواقب انقلاب او جهاد ته زیاتـه صدمه رسوی ځکه دا ډیرځله امکان لری چی روسان د ځینی شکلی تنازلونو یا د فشار له مخی پاکستان دی ته وهڅوی چی د غلط فهمیو په وړانـدی کلک دریځ ونیسی او د پریکړی په وړانـدی د انتقادونـو مخه ونیسی چی دا کار روسان د خپلـو مخالفینو د تکولو او هضمولونه بی پروا کوی داسی نه چی د قضیی د حل په رابطه د روسانو پلانیزه شوی طرحه فقط په همدی

حدودو کی ادامه پیدا کړی چی یو خل د پاکستان حکومت مهاجرین د کابل حکومت ته و سپاری او د مجاهدو قوتونو پرستیژ ته صدمه ورسوی نور هلته روسان د مجاهدینو او افغان ملت په ځای ټوله د پاکستان د خلکو پرضد پاتی پروگرام بی له ځنډه تعقیب کړی .

دا خو هر با بصیرته درک کولای شی چی افغانستان د روسی استعمار آخرین منزل نه دی او په افغانستان کی د روسی فوځ موجودیت پاکستان د ځانه د دفاع په آخرینی سنګر کی درولی دی او د پاکستان د پاره د مجاهدو قوتونو موجودیت او په راتلونکی پړاوکی د هغوقوی پاتیکیدل ترټولو مهمه مسأله ده او په هغه صورت کی چی پاکستان د ځینی شرائطو یا د کابل د بی اعتباره او مزدور رژیم د غلطو اعتمادو نو له کبله د موجوده جهادی قوت پرستیژ او نظم ته په بی تفاوتی وګوری او هغه کمزوری کړی هلته به و بیا د پاکستان په کومک روس او کابل رژیم خپل هدف ته رسیدلی وی .

د مجاهدینو د خوښی او تفاهم پرته بله هره پریکړه او تفاهم د دغسی یوخطرناک سوه تفاهم د پاره زمینه جوړه وی.

ممکن څینی داسی و انګیری چی د روالو خبرو په رابطه د مجاهدینو او یا ټولو مجاهدینو نه خوښه او رایه اخستل اوس د وخت نه پاتی خبره ده او راتلونکی پریکړه او طرحه بنائی جدی مخالف پیدا نکړی ولی داسی کسان بنائی ټول ملت په ځان باندی قیاس کړی او د بلی خوا به همدا خوشباوره وګړی وويني چی که د ملت د ارادی او قناعت نه اوچته پریکړه مخالف هم پیدا نکړی خو دغه پریکړه به د همـــدی سطحی کسانو نـه د اسارت د اعتراف نـه وروسته د روسی د دویم پروګرام اجیر نوځیان جوړوی .

داسئی ده چی پاکستـان او پاکستانی حکومت سره د روسانو په رابطه ژوره مروی شته او هغوی په افغانستان کی د روانی شخړی پاتی ابعـاد او لړونه ښه پیژنی لکه څنګه چی هغوی د همـــدی قضیـی په رابطه تر هر بیرونی جهت زیات متأثر شوی جهت دی ولی دا هم بایـــد ووایو چی د روس په وړاندی ماتی او بری پخپله د افغان ملت د روحی او ارادی پوری تړلی کار دی د همدی ځایه باید د پاکستان حکومت د ملت د ارادی غیاب او د مجاهدینو د ممثل د پاره تیل شوی مشکلات د خبرو او موافقو په نسبت یوه جدی

ان تردی چی همدا جرمونه او تجاوزونه د رژیم نه د دفاع په جامه کی قانونی اقدامات گڼل کیدل .

هغه بدگمانی، دښمنی ، د نفاق او بی اعتمادی تخم چی د ترکشاه په دوره کی شنـدل شوی د یو نسل د تبا کیدو شرائط ئی برابرول . پـه دی دوره کی د افغانستان زیات وگړی د نورو په نسبت خپل اعتماد د لاسه ورکړی وه او رژیم هم په پوره قساوت او بی حیائی د ملت افراد یو د بل پسی د جاسوسی په نظام کی سره او بدلی وه ، ان تردی چی معصوم ماشومانئی د خپل کور د جریان په هکله په جاسوسی موظف کـول .

د کودتائی رژیم پـه لمړی کال کی د شپی له خـوا د کور د دروازی عادی ټکولو هم د کور د ماشونو په ستونی کی مړی بندوله ځکه د رژیم په نسبت کرکه او تنفـر زیاتو کورنیو سره داسی جـرم پیژندل شوی وه چی یوه ورځ به د رژیم پولیس هغوی پری محاسبه کوی .

هیڅ ممکنه نه ده چی د دغی دوری دوحشت او استبداد سپیړی په ارقامو کی وښودل شی، ځکه چی څو زریـز محدود کمونستی ټولگی چی د اقتـدار گدی ته د کودتا او روس په

غوتیـه وګنی او د دی غوتی د پرانستلو پرتـه د خبرو او سیاسی مانورو جریان د مسکو په ګته دی البتـه چی وخت حتماً د پیچلومسائلو په باب د ځان سره تفصیلی ځوابونه لری.

که څـه هم کیدای شی ځینی داسی اشخاص پیدا شی چی د سیاسی مانوری پـه لړکی د پـردو د ارادی او تصمیم نـه هم اوچت ښکاره شی خو دغه رجـال هر څوک چـی وی د حدودونه بهردوستان تمثیلوی نه ملت د همدی ځایه ویلی شو چی د جهاد د بنیادی اصولو او ارزښتنو د مراعات پرته د هغـوی موافقـه او سرخوځول نـه ملت تمثیلـوی او نـه د راتلونکی غلط فهمی د عواقبو مخه نیسی .

دا باوری خـبره ده چـی د ملت د ارادی او اسلامی نظام پرته د قضیـی هرحل د ځان سره د قضیـی پرته نور مشکلات راوړی او د همـدی ځایـه ښائی چی د خـبرو په حساس پـړاو کی د پاکستـان حکومت د خـبری سر د ملت نمایندګانو ته وسپاری او یا حالات خپله مجاهدین مطرح کړی خو پـه هغه صورت کی به روسان هڅه کـوی چی د قضیـی د حل محتوی او نقاط د مجاهدینو او پاکستان ترمنځ د نفاق او دوه مخی پـه پالیسی کی ونغـاړی ترڅـو خپـل کمـزوری

مخالف د کتو او شرائطو پــه پوره کــولــو د قــوی جهت پرضد د ځان سره ملګری او د روسی ضد جهت په ځپلو کی تری کارواخلی .

**پاکستان په سخت موقف کی ودروی :**

داسی شواهــد نشته چی د روان سیاسی حل پــه هکله سری ته د دی اطمئنان ورکړی چی روسان به هغه ترآخره وپالی او پــه راتلونکو پړاونــو کی به د هغه نــه د پاکستان پرضد کار نه اخلی .

پاکستان د افغانستان د جهــاد په رابطه د یوقوی موقعیت نه دریځ نیولی او په دی دریځ‌کی د هغه نه د دنیا غوځ اکثریت هیوادونه ملاتړ کــوی او هر کال د افغانستان د قضیی په رابطه د نړی د هیوادونو دریځ نور هم پیاوړی کیږی چی پــه طبیعی ډول هغه د پاکســتان موقف نــورهم قوی‌کوی . روسانو په دی ځلوروکلونو کی د دی هڅه کړی چی پاکستان د دی قوی مؤقف نه راوغورځوی ولی د هغوی هڅی اکــثراً برعکس نتیجه ورکوی او د پاکستان موقــفئ نور هم قوی کړیدی .

د روانــو خــبرو په رابطه د روسانــو د مخامخ خــبرو

تاکیدی پیشنهادونه همدا هدف په گوته کوی چی یو وار پاکستان په کمزوری حالت کی واقع کړی. ولی په هرصورت پاکستان مخامخ خبری تراوسه چور رد کړی او ښائی پاکستان د دی پلان په بدو عواقبو ښه پوهیږی خو د موجوده خبرو اترو جریان ته یوه سطحی کتنه او د هغو د سابقی ابتدائی سروی دا ښئی چی روسان هڅه کوی د همدی تفاهم او لیدنو د لاری یوځل د پاکستان په موقف کی بدلون راولی او هغه د دی قوی دریځ نه بی ځایه کړی ترڅو د خبرو د کلی موافقو په لړکی پاکستان پخپل دپلوماسی دام کی راګیر کړی او دا څه بعیده هم نده . د سادات «کامدیوید» او د هغی ترڅه تجربه زمونږ په وړاندی ده د ۱۹۷۳ کال د عربو او اسرائیلو جنګ وروسته اسرائیلو او امریکا کوښښ وکړ چی د حقارت په عقده اخته عرب به حتماً داسی جګړی په کار اچوی چی په زمکه لویدلی عربی حیثیت پرځای کړی او یا به د سیمی خلک د امریکا پرضد لاس په څه نورو اقداماتو وهی ځکه ۷۲ کال جګړو د عربو موقعیت قوی کړی او عربی جبهی د دی جنګ په لړکی په ځان باندی د اعتماد په خوا روانه وه ولی د واشنګټن

بې ځایه داد ګیر نو بالاخره موسی سادات د «کامپډیوید» د بدنامی سولې په دام کې بند او په نتیجه کې د عربو او اسرائیلو د جګړې فضا د مصر او اسرائیلو یو طرفه سولې داسې اشغال کړه چې اسرائیلی فوځ په ډیره داد ګیر نه د فلسطین ملت په لبنان کې وتکوه او د لبنان ځځه ئی بیا وشاره هغه هم په داسې حال کې چې دکامپډیوید سولې دیوی خوا د عربې هیوادونو هغه شکلی وحدت دړی وړی او مصرئ په داسی حرج موقف کې وغورځوه چې تردیره یه د اسرائیلیانو د تجاوز په وړاندی د جنګ او مقاومت اراده یکی را پیدا هم نشی .

همداسی کټ مټ روس هم غواړی چې د افغانستان د قضیې نسبتاً جدی ملاتړ پاکستان د سولې د یو طرفه خبرو د لاری د یوه روسی کامپډیوید په جال کې را بند کړي او هغه د دی غوځ دریځ نه لري بې ځایه کړی په هغه صورت کې بیادروس په خبرو او موافقوکې دکه ټوټکی ټولو هنر پټه زده دی . د بحث وړ موضوع ګڼل کیږی چې مسکو غواړی د افغانستان د ډراني اوضاع په ارتباط د ځان سره پاکستان هم بدنام کړی د همدی ځایه خو هغه د بهرنیو مداخلو د بندیز او د خپلو استیتی پولو په رابطه بین المللی

ضمانتونه غواړي چې دا ټول په څرګند ډول د قضيې په ارتباط د روسانو د ناولی نيت څرګند وي .

د وخت نه مخکې خبره ده چې سري د روسي استعمارګر دولت دګوريو او غلطيو په رابطه مشخص تګی په‌ګوته کړی ولی دا طبيعي ده چې د موجوده رژيم د رسميت پيژندلو يا د مهاجرينو د بيرته ستنيدلو وروسته روسان د موافقو د جزئياتو په توجيه او تفسير د ځان د پاره دا پلمه پيدا کولای شي چې د خپل غلطي او ناغيړي‌ګناه په پاکستان واچوي زکه تراوسه د مسلح مقاومت مسأله څپله د افغانستان د ملت پوري مربوطه خبره ده ولی کله چې پاکستان د دې قضيې په ارتباط د کابل رژيم سره څو کلي او عمومی موافقو ته ورسيږي هلته بيا د پاکستان اوسنی دريځ په طبيعي ډول تغير خوري او د همدی موافقو له مخې هغه ته په افغانستان کې د هر هغه حالت مسؤليت پرغاړه کيږي چې د کابل او مسکو د پاره زيان بښونکي وي او د همدی مسؤليت له مخې په تدريجي ډول پاکستان د روس سره د دې قضيي په پاتو او راتلونکو ابعادو کې د خپل کيږي چې دا کار يوه ورځ پاکستان د روسانو د پلمو په دام کې غورځولی شي د همدی

ځایه څه او مناسبه خبره داده چې یاخو پاکستان زور اچولی وه چې د قضیې په باب دې ملت تصمیم ونیسې یا د دې د قضیې په باب د خبرو پروگرام یوازې د پاکستان د اشتراک د حدودونه لوړ وای یا کم له کمه د ایران په اشتراک او توافق .

ولې بیا هم د دې ټولوټاولوهیلو سره سره د افغانستان د خلکو مقاومت اوس دې مرحلې تــه رسیدلی دی چې ان شاء الله هغه به په هر فرصت کې پاکستان «که څه هم پاکستان دې ته متوجه نـه وي» په سختو شرائطو او حرج موقف کې ژغوري ؟

د روس پرضد راپورته شوي څپه محدوده کړي :

نن پــه افغانستان بانـدې د روس د تیري نـه همغـه څپره جوړه شوې چې سل مخه پـرې خوږیږي د دنیـا دوه برخې ملتونـه او تقریباً دری برخې احزاب او ټولنې ټـول د انسانی همـدردۍ پـه بناء د روس سره د رقابت او دښمنی له کبله د افغان ملت د دې بدې ورځ په خاطر ټوله بېره په روس اچوي او د همدې دوامداری پرې له کبله په بین‌المللي محافلو کې د روس دپلوماسي صدمه لیدلی او د مسکو بهرنی

سیاست خپل مؤثریت له لاسه ورکړیدی لکه څنګه چې د ملتونو او احزابو سره ان د کمونستي او سوسیالستي احزابو په سطحه د مسکو مناسبات او پرستیژ ګډود شویدی .

کیدای شي مسکو د خپل نوکر رژیم د بقاء او د روسي قوځ د حیثیت په خاطر په افغانستان کې د وینو د تویدولو سلسله نوره هم اوږده کړي ولې د نظامي اقتصادي او ځاني تلفاتو برسیره د جګړې ادامې روسانو ته د افغانستان د پولونه بهر په توله نړی کې هم مشکلات پیدا کړیدي ، په افغانستان کې د روس د مظالمو په ارتباط هره ورځ تازه اخبار اوري او د همدي مظالمو لامله هره ورځ یو یادوه هیواده دروسي په دې کار بدوالي چې دا کار اوس روسان تر هرڅه زیات ځوروي ، په دې لړکې روسانو ډیر کامونه اخستي او ډیر پلانونه ئې په کار وړي ترڅو د دې روس شرمونکي فضاء نه ځان بهروباسي. که څه هم په دې تیرو کلونو کې د کابل او مسکو سهکو مانورچیانو څوځله بهرني احزاب او ژورنالستان راوبلل په ډیرو نورو مصارفو او فوق العاده امنیتي تدابیروئ لاس پوري کړترڅو د یوي هفتي یا د هفه نه هم کمو ورځو د پاره د کابل حالات آرام وښيء

ترخو دنیا داسې قانع کړي چې کنې مقاومت ختم دی او ملت د هغوی په خوا کې ولاړ دی ولې بهرنی ژورنالستان او سیاسي رجال چې پاکستان او کله کله د مجاهدینو له لیاري د افغانستان د ننه څوځوځله تللي او د اوضاع نـه د نژدې خبردی هیڅکله د کابل او مسکو په دې مسخره پروګرامونو غولدای نشي چې د همدې ځایه د سیاسي او سولناک حل طرحـه ممکن یوه ورځ یا همـدا اوس اوس د روسانو له خوا د روس پرضـــد د دغه پـراخ بین المللي حساسیت او کرکې د کمولـو په غرض په کار لویدلې وي او کیـدای شي پـه مناسب فرصت کې د مسکو اقتدار چیان د جګړې او قضیـې د رواني ستراتیـژي د بدلیـدو په صورت کې دغه کرکـه او نفرت را تیټ کړي .

سنم چې روسان په افغانستان باندې د تجاوز په نتیجه کې پوره رسوا شوي او داسې په آساني نشي کولی دغه ژوره کرکه او نفرت را کم کړي ولې د قضیـې په هکله د خبرو او تفاهم لار چـې روسانـو پـــه مخ نیـولی ده کیــدای شي د بین المللي محافلـو ، سوله دوستو ملتونو توجه د جهاد او روسي تجاوز نه د کوردویز آرامو سرکو تـه راواړوي هغه

هم په دی صورت کی چی د کوردویز زیاته او د وخت نه مخکی خوشبینی د بهرنی دنیا د پاره په زړه پوری خیالی صحنه جوړوی .

داسی ممکنه ده چی د کوردویز خوشبینی او د پاکستان مجبوری د راتلونکو کلی موافقو په مرسته په فوق العاده ډول د نړی توجه د قضیی حل، د مظالمو پای، د افغانستان د ملت آزادی ته راوګرځوی . د مسکو د مناسباتو په آسمان کی د کرکی او نفرت دوریځو په لیری کیدو او د روس نیمه فلج وهلی دپلوماسی په وجود کی د حرارت او حرکت په را پیدا کیدو روسان د قضیی پاتی برخه په سیاسی زیرکی د ځان په ګټه وڅرخوی .

مسکو د افغانستان د حالاتو په رابطه د مره بی‌اعتباره شویدی چی نن په بین‌المللی محافلو کی هغه ته پرونی پرستیژ لاس ته راوړل ګران کار دی ان ـ تردی چی شائی مسکو د همدی بی اعتباری د تلافی په خاطر هم د روانو خبرو په لړکی د یو بل معتدل رژیم د منلو ترحده قانع شی خو لکه چی په راتلونکی فصلوکی به جوته شی دغسی رژیم راوستل او منل هم د روسانو ستراتیژی نه ده بلکی د هغه

نه به د یوتا کتیک په توګه کاراخلی چې د همدی ځایه ملت
ته د روانـو خـبرو په رابطه د روسی د پلانونونه ویـره
په کار ده .

دا چې روسان پـه وار وار دا پروپاګنـده کـوی چې
د افغانستان په ګډوډو حالاتو ګی د پاکستان ، چین مصر...
او بالاخره د امریکا لاس دی او د هغوی فوځ د کابل رژیم
په بلنه د دغو بهرنیو لاس وهنو د مخ نیوی په منظورلیږل
شوی، دا ټول یوازی د دی د پاره چې خپل جرم توجیه او
د نړی د پړی نه ځان ګوښی کړی او د همدی مطلب د باوری
کولـو په خاطر هغه د افغانستان د قضیـی پـه رابطه پیـل
شویو خبرو کی د بهرنیـو مداخلو د بندیز تضمینات غواړی
او د دغسی تضمیناتو مطرح کیدل او اجـراء برسیره پردی
چې د جهاد حیثیت ته صدمه رسوی د مجاهد ملت سره لویه
جفـاء ده. په راتلونکی کی د روس پرضد را پاریدلی کر که او
نفرت را ټیټوی ز که د قضیی داسی مطرح کول او حل چې
پـه هغه کی مجاهدین د بهرنیو د لاس آله معرفی شی د نړی
د خلـکو ذهنیت زمونـږ د ملت برحقی مبـارزی پـه نسبت
مغشوشـوی او د روس پرضـد دغـه ځو ښیـدونکی کر کـه

همکاری رسیدلی وه غوښتل ئی د همدی وحشت او تشدد لاری خپلی سری کودتا ته د سره کمونستی انقلاب رنګ ورکړی په دی صورت کی چی ملت ټول د هغوی مخالف او دښمن وه هغوی غوښتل چی د همدی تشدد، زور ، ځوانو بند او غرغرو د لاری د ملت په خوله د سکوت مهرولګوی او دنیا ته دغه مرګ ځپلی سکوت دکمونیزم په هکله د خلکو د ملی ملاتړ په رنګ کی وړاندی کړی ترڅو وکولی شی خلک او تاریخ دواړه دکودتا په نسبت د انقلاب په غلط فهمی کی وغورځوی ولی د تشدد سرو نخرو د ملت په خوله د سکوت مهر ونشو لګولی هلته چی د افغان د نړیک غږ دنیا ته ورسید .

## د مقاومت څپره

بی مقدمی بایـد ووایم چی په معاصر تاریخ کی زمونږ د هیواد د پنځمی اسیزی حالات او شرائط داسی سره برابر شول چی کمونیزم او اسلام یو د بل په مقابل کی په قاطع او غځ دریځ کی ودروی او همغسی وشول هم .

د ۱۳۵۰ نـه تر ۱۳۵۲ پوری په پوهنتون کی د سیاسی او دلئیز فعالیتونو په نتیجه کی د مسلمانانو قاطع

د ځوبنه غورځوی .

د کابل د تجرید شوی رژیم سره خبری او بیا د هغه په تعهدونو او خبرو باور بخپله هغه غلطی ده چی د افغانستان د حالاتو په رابطه د روس په مخ په نسبتی توګه پرده غوروی او د راتلونکواختلافاتو او کړکیچونو پره زیاته بخپله د خبرو خواو خاصتاً پاکستان ته متوجه کیږی ځکه همدا بی باوره خبری او موافقی د قضیی ستراتیژی ته په همدی حدودو کی د رنګ ورکولو په خاطر په کارلویدلی دی.

د تپل شوی رژیم په رسمیت پیژندل او استقرار :

د مسکوواکمنه داره ماره ډله د کمونیزم په جال کی د افغانستان د لویدو نه پوره باوری وه ځکه د کریملین مغرورو حاکمانو د خپلو خلقی نوکرانو په اومه معلوماتو باور درلود فکرئی کاوه چی نور د هغوی وفادار نوکران په ملت کی کافی ملاتړ لری ولی د هغوی په اصطلاح انقلابی اصلاحاتو بخپله د زمانی په ژبه د دی ملی ملاتړ سسیء ځواب وویل هلته چی رژیم په ملت کی د بقاء او پائښت ټول عناصر د لاسه ورکړل تردی چی د یو نیم کال په موده کی د هغوی د خلقی رژیم بنبی په هوا شوی ولی د کریملین

کبرجنو واکمنانو پـه ظالمانه توګه دکابل رژیم پـه چریکی دول د فوځ په اوږو بدل او موجوده رژیم ئی تراوسه د روسی فوځ په اوږو سپور کړیدی . که هرڅه روسانو توطئی کارولی او د زاری او زور د دوارو لاروئی هڅه وکـړه چی د خپل نوکر رژیم د پاره پـه ملت کی بیخ پیـدا کړی ولی برسیره پردی چی رژیمونو ملی قاعده پیدا نشوای کړای) په بین‌المللی سطحه د نړی د خلکو او ملتونو له خوا غیرقانونی وپیژندل شو چـی دی کار د کابل رژیم پـه مخ زیاتی لاری بندی او د مسکو د حاکمانو په سرئی د غلاخلی کیښود .

اوس اوس روس ته همـدا مسأله هم خورا مهمه ده چی د کابل رژیم په دنیـا باندی وپیژنی که څـه هم په دی لاره کی ډیرناکام کوښښونه په لاره ولویدل ولی دا کوښښونه همغه د ملی قاعـدی د پیدا کولـو ته ورته نتایج ورکړل ، هرکال د رژیم آبرو او پت نور هم په نړی کی تیتیږی .

دا دری کالـه کیـږی چـی د افغانستان د قضیـی د سیاسی سولناک حل د مطرح کیدو د لاری په دی هڅه کی دی چی د کابل رژیم ته د قانـونی رژیم حیثیت وکتی او په نړی کی د هغه د رسمیت پیژندلو د پاره کوښښ وکړی .

د کریملین ناروا حاکمان په دی لټه کی دی چی د پاکستان سره د افغانستان د قضیبی د شا په شاه خبرو د لاری هم خپل نوکر رژیم د قضیبی په ارتباط مطرح کړی او داکار د روسانو د مذبوحانه هلوځلو پوره څرګندوی دی.

مسیءه ده چی د پاکستان له خوا د غیر مستقیمو خبرو طرحه او اقدام د کابل رژیم د پاره هیڅ حیثیت نه پریږدی ولی د کومه ځایه چی دی رژیم د حیثیت اوقانونیت ترتولو عادی عناصر هم د لاسه ورکړی په ډیره پستی په دغسی خبرو اترو کی هم ورته برخه اخستل غنیمت ښکاری ولی دا هم باید له یاده ونه باسو چی مسکو او کابل دواړه د خبرو د پیل نه تراوسه په دی هڅه کی جدی دی چی د کابل رسوا او لویدلی رژیم د شا په شا خبرو د ذلیل موقف نه بهر کړی او بالاخره د هغوی کوښښونه روان دی چی د روانو خبرو په یو پړاو کی پاکستان ته د دی اعتماد ورکړی او یا د هغه د تیروستو د پاره یو قدم په شا ولاړ شی چی د کابل حکومت په رسمیت وپیژنی. وروسته بیا روسانو ته د په شا تللی تاکتیکی قدم تلافی آسانه ده . دا چی دلته روسان د دی په شاه راوری شرمیدلی رژیم د تحکیم په ځای

ولی د یو بل نیمه معتدل رژیم طرحه په لار نه غورځوی او ښائی که داکارو هم کړی ـ ممکن عامل ئی داوی چی په دغه غیرقانونی فضا کی چی د هغوی نوکر رژیم په رسمیت ونه پیژندل شی د بل رژیم طرحه اوتوافق د روسانو د ماتی معنا لری د همدی ځایه روسی مغرور طاغوتیان خپله خبر ترسره کوی که څه هم د یو ملت په مرگ کی وی .

که چیری د روانو خبره په هر پراؤکی مسکو په دی بریالی شی چی د کابل حکومت په پاکستان باندی د یو قانونی رژیم په توگه ومنی پاکستان د افغانستان د حالاتو په هکله په طبیعی توگه د دی موجود قوی موقف نه لویری ز ده په هغه صورت کی که د کابل رژیم د بهرنیو مداخلو ، بین‌المللی تضمیناتو په عنوان روان مقاومت ختم نشی کړای افغانستان ته د روسی‌فوځ بیا راغوښتل‌کابل په اومنی مشکل کی (چی‌د روسانوموجودیت پکی غیرموجه دی) نشی‌غورځولی.

دا چی پاکستان به که او د څه قسم تعهدونو او تضمیناتو وروسته دی کار ته حاضریږی دا پټه خبره ده ولی ښائی پاکستان د دنیا ترټولو لویی قضیبی په رابطه سطحی موقف ونه نیسی او په سیمه کی د غیرعادلانه حل اوسولی

بدو عواقبو ته متوجه وی خو دکومه ځایه چې د روسی فوځ موجودیت د افغانستان په قضیه کې ترټولو لویه غوټه ده ښائی د روسی فوځ د بیرته تګ په رابطه کلی توافق او تړه هم د سولی او حل ترټولو لوی اصل او مهم رکن وی چې دیرځله همدا مسأله ښائی د پاکستان د حکومت نمائنده د قضیی د نورو ابعادو نه بی پروا او هغه د کابل رژیم د رسمی پیژند لګوی ته راوهخوی هغه هم په داسی حال کی چی د روسی فوځ د وتلو د پاره د تقسیم اوقات له مخی کافی وخت هم پاتی وی .

ښائی ځینو سره داسی تصور پیدا شی چی د روسی فوځ په غیاب کی اصلا رژیم څه کولی شی ؟ او رژیم په رسمیت پیژندل په ملت کی د هغه مرکزیت نشی تقویه کولای لکه څنګه ښائی ځینی دا تصور ولری چی د رژیم د رسمیت پیژندلو په صورت کی قضیه او مقاومت پای ته رسیږی په داسی حال کی چی دا دواړه تصوورونه په پوره تنی شکل بی ځایه او غیر منطقی دی اصلی خبره داده چی د رژیم په رسمیت پیژندلو او د روسی فوځ په وتلو نه رژیم ختمیږی نه مقاومت ، بلکی قضیه د پاکستان د اشتباه لامله یوه نوی

پیچلی پړاو تــه نیږدول کیږی ز کــه د روسی فوځ دوتلــو خبره هلته منل کیږی چی روسانوته د رژیم په هکله اطمئنان ورکړل شي او د مقاومت ختمیدل هلته ممکن دی چی د ملت غوښتنی پوره ، هغه ته د خپلی خوښی رژیم د انتخاب حق ورکړل شي او په ملت باندی د پردو د ارادی پــه اساس کوم رژیم ونــه تپل شی خو د دی ټولــو حقائقو سره سره د کابل د رژیم پــه رابطه د یو قانونی رژیم اعتراف په هــره مرحله کی چی وی قضیــه یو نوی خطرناک پړاو تــه ننباسی چی هلته به بیا نه پاکستان او نه مجاهدینو سره دغه د روس د غلطیــو پرضـــد قــوی موقف او قــوی منطق پــه لاس کی پاتی وی .

لکه مخکی چــی مو ووویل د کابــل رژیم پـــه رسمیت پیژنــدل ټول مشکل نشي حل کولای او نــه هغه د مقاومت د ختمیــدو معنا ورکوی ولی منتهی پــه هغه صورت کی بــه د موجوده مقاومت په هکله د کابل رژیم سره دقانونی اعتراض حق موجــود وی چی دا کار د یوی خوا مجاهــدین او د بلی خوا د هغوی سره په سیاسی ډکرکی نسبی ملاتړ جهتونه په کمزوری موقعیت کی دروی .

سيء ده چې پــه افغانستان کې د روس فوځــي موجوديت د افغانستان د خلکو امنيت ، ژوند او آزادي دري واړه له منځه وړي او دا ډيرلــوي تهديـدګڼــل کيـږي ولې د موجوده رژيم پـه رسميت پيژنـدل او د هغه تحکيم تــردې هم لــوي خطـــر او ستر تهديـــد دی ځکــه د روسی فـوځ د موجوديت په صورت کې روسان په ټوله دنيا کې د شرميدلی موقف سره مخامخ کړل ولې خــدای مکړه چې که موجــوده او يا هغه تــه ورتــه رژيم د روسی پــه فرمايش د افغانستان پــه خلکو ومنل شي په هغه صورت کې بــه د روس پلانونــه او ظلمونه په همدې شکل روان وي ولې هيڅوک به هم د هغه د مخنوي په هکله څــه نشي کولای او په دې رابطه د ډيرو له نظره به روسانو ته هيڅ قسم پړه هم متوجه نه وي .

د روسانو پرضد د سياسي تحرک مخنيوی :

داسې بين المللي غونــډې او د دولتي رجالــو کتني او ملاقاتو نه به نه وي چې په دې څلورو وروستيو کلونــو کې د افغانستان د قضيې په تيره د روس د څرګند هجوم په هکله په هغو کې د روس تجاوز نه وي غندل شوی. بنائې د افغانستان قضيه د هغو قضايا ؤ په سرکې ځای ولرې چې په لنډه موده

کی به بین‌المللی سطحه‌ئی د دنیا د خلکو خواخوږی او ملاتړ جلب کړیدی لکه چی ځینی سیاسی تحلیل‌گران چی باور لری د افغانستان د قضیی په ارتباط د روس سوله ایزی طرحی «روانو خبرو» پیشنهاد او تعقیب د همدغسی فضاء په نسبت د روسانو د حساسیت نه چینه اخلی .

څنگه چی د افغانستان مقاومت د یو واحد ممثل په برخه کی د خپل مشکل له کبله نشی کولای د قضیی په سیاسی جهت کی فعال رول ولوبوی د همدی ځایه د قضیی په کته سیاسی تحرک زیات د پاکستان په اوږو پروت دی ولی د هغی ورځی راهیسی چی روسانو د خپل نوکر رژیم سره د خبرو طرحه په مخ نیولی پاکستانی مقامات هم د قضیی په سیاسی تحرک کی د سره جدی نه ښکاری زکه پاکستان فکرکوی د هر سیاسی تحرک ابتکار او طرحه د روسانو اعصاب خرابوی او د حل د شا په شا دپلوماسی ته صدمه رسوی .

پاکستان که څه هم په دی باور لری چی د اسلامی هیوادونو او د تولی سوله دوستی نړي ملاتړ او همدردی د موجوده پیمانی څخه نشی زیاتیدای ولی که چیری

د افغانستان د قضیې په هکله سیاسي جدي فعالیت شوی وای نو حتماً به‌ئې په اسلامي نړۍ کې د روس پرضد داسې پریکړو ته لار پرانستلې وه چې د افغانستان په باب د روسي دغه بې رحمه ستراتیژۍ کې بدلون راولي .

په سیاسي لحاظ د ایران نسبته ګډ دریځ د روسانو د پاره یوه آسانې تړ له وه ځکه روسانو د ایران څخه دا توقع نه درلودله . که ایران او پاکستان دواړو اسلامي هیوادو د افغانستان سره د اسلامي خوا خوږۍ او ګونډه په بنیاد نسبتاً لږګډ موقف نیولې وای زه باور لرم چې روس د دې دواړو هیوادو مواقفو ته ډیرقیمت ورکاوه . د مثال په توګه که په اقتصادي او سیاسي لحاظ د افغانستان ګونډه یو هیوادونو یا په عمومي توګه اسلامي هیوادونو د افغانستان د قضیې په رابطه لاس په ځینو اقداماتو وهلې وه لکه د سفارتونو بندول یا د قنصلګیري درجې‌ته د هغو ټیټول او د هغو استعماري پروژو «چې روسانو پکې کار کوي» بندول او په عمومي توګه په بین‌المللي محافلو کې د روس پرضد د فعال موقف نیول، اوومروبه مسکو څه تنازلونو ته مجبور کړی او د قضیې په باب به‌ئې خپله پالیسي بدلوله . خو دې کار او

د هغه ابتکار د پاکستان پوری زیاتــه اړه درلودلــه ولی پاکستــان د سیاسی خبرو د جریان او ادامی پــه خاطر د دامی کار او ابتکار نــه ځان ساتلی دی چــی دی کار هــم روسان په د مه کړیدی .

پــه زیاتو بین المللی محافلوکی که چی د مجاهــدینو په رسمیت پیژندلــو او یا هغو تــه د افغانستان د کرسی سپارلــو خبر بحث شوی هلته همــدا یو ځواب زیات تکرار شوی چی دا کار روسان په غوصه کوی او د خبرو د مثبت پرمختگ مخه نیسی .

یوه سطحی احصایه دا ښی چی د افغانستان د قضیی په رابطه د نړی د خلکو او ملتونو حمایــه او ملاتړ د بلی هری قضیی په نسبت زښت زیات دی او د نړی په سیاسی هسک افق کی هغــه نــه ډوبیدونکی ستــوری دی ولی د همــدامی ملاتړ او شهرت ترځنګ تراوسه هغه د مالیزیا پرته په بل هیڅ هیواد او هیڅ تولنه کی رسمی نمائنــده نلری او په دی رابطه بندی کوښښ هم نــه لیدل کیږی او که چی پــه دی رابطه څه فعالیت شوی سیاسی محافلو ډډه کړی او ویلی دی چی دا کار د قضیی د سیاسی حل روانو غونډو ته ضرر رسوی،

اکثریت وګاڼه او په روحی لحاظ هم په دی علمی مرکزباندی مسلطشول .

پـه ملی سطحه کی د یوی خوا د نظام نــه د خلـکو کرکه او د بلی خوا د کمونیـزم سره زموږ دولس عنعنوی تنفــر د دی سبب شو چـی د اسلامی تحریک د پاره خلک خپله بی کچه غیږ پرانیزی .

د همدی ځایـه روسان او د هغوی وارخطا مزدوران پـه دي لټه کی شـول چی د رژیم چوکات بـدل کری عقدمن دائود چی مخکی هم د کمونیـزم او مسکو سره د ملګرتیا سابقه درلودله هغوی تـه په لاس ورغلی وسله وه ، هغه وه چی داؤد خان د خپل د تــره د ځوی سـره د تفاهم یاسؤ تفاهم په نتیجه کی کودتا وکړه او په عیواد کی د جمهوریت د اعلان سره جوخت د مسلمانانو پرضد خپل امیرانه تهدیدات اعلان او ترډیره حده ئی خپلو تهدیدنو ته د عمل جامه هم وروا‌غوسته .

**تاریخی اقدام :**

که څه هم مسلمانان نظر خپلی لنډی سابقی او بی کچه بری ته ډیرقوی ښکاریدل ولی څوک وائی چی دغسی د څو

# روانی خبری او راتلونکی افغانستان




مؤلف : محمدزمان «مزمل»

حزب اسلامی افغانستان

دکتاب نوم : روانی خبری او راتلونکی افغانستان

خپرولکی اداره : دارشاداوفرهنگ کمیسیون دنشراتو آمریت

اهتمام : دشفق مجلی مدیریت .

شمیر : ۳۰۰۰ توکه

چاپ : د۱۳۶۶ ه ش کال دمیزان میاشت


